# سریزه

ادب د ټولنې د اقتصادي، سیاسي اجتماعي او کلتوري ژوند هنداره ده، په تیره بیا شفاهي او عامیانه ادب که نثروي او یا نظم خو د وګړو عملي روان ژوند ځنګه چې دی په همغه ډیره انعکاس ورکوي. همدا وجه ده چې ټولنپوهان او سیکالوجستان د ټولنو او اولسونو په مطالعه پیژندنه کې دیوې مهمې منبع په توګه هغې ته مراجعه کوي.

د نړۍ ټول اولسونه د خپلو خاصو عیني او ذهني شرایطو د ننه ځانته خاص کلتور او فرهنګ لري چې د هغوی په خپله ساده ژبه د نظم، نثر کیسو، متلونو او فالونو په قالب کې سینه په سینه او خوله په خوله د یو نسل نه بل ته انتقالیږي او ساتل کیږي.

همدا ډول د پښتو ادب ډیره غوره او مهمه پانګه د خلکو په ګرني ادب کې پرته ده چې د پښتون اولس د اقتصادي او اجتماعي ژوند کسب او کار او د دوی د رواجونو او دودونو یو ښه انځور رسموي.

د مثال په ډول د پښتو لنډۍ د هغو ښځو او نرو د زړه د تریخو مخلوق دي چې له ډیلیک او لوست څخه محروم پاتې وو او په شفاهي توګه د دوی په منځ کې د هر ډول اجنبي او بیګانه تاثیراتو نه په امن ساتل شویدي او د خلکو د ژوندانه داسې ژور او سپیڅلي احساسات پکې شته چې د حاکم، خان او بادارستاینې او مداحی پکې نه لیدل کیږي، ځکه چې د غه خلک واقعاً له ریا او تظاهر نه کرکه کوي.

دا کتاب چې د پتنګ یو فولکلوري اثر دئ او د خوست له سیمې څخه یې پکې ډیرې ناچاپه لنډۍ، متلونه، قصې او داتن ناري راټولې کړیدې د ښوونې او روزنې دوزارت د تألیف او ترجمې ریاست د عرفان مجلې له خوا چاپ شو.

عرفان د پتنګ د غه زیار د ستاینې وړ بولي او د اولسونو د فولکلوري او با ارزښته آثارو په راغونډولو نه او ساتنه کې د ده او هم د نورو درنو فولکلوریستانو او اولسي ادب لیکوونکو توجه او پاملرنه غواړي.

سمیع الله ساپی د عرفان د مجلې مرستیال

# دلوستونکو سره خبرې

دهیوادپه خپرونو کې دځینو ښاغلو لــه خوا د افغانی فولــکلور پــه برخه کې دا خبره ډیره زیاته اوریــدل او لیدل کیږي ، چې وایــی : «دافغانی فولــکلور له پاره ډیر کارنه دئ شوئ ، او هغه څه چې شوی بیاهم زموږ دهغې کلتوري ذخیرې په نسبت چې په خلــکو کې تراوسه پوري شته، هیڅ دئ .» دهغې عــلاقــې له مخې چې زه یــې دپښتو دشفاهي ادبیاتودټولولو سره لرم اودادرې کاله کیږي چې په دې بــرخه کې پلټنه کوم او دکلیو او بانډو وله خلــکو څخه ددغې قیمتي کلتوري ذخیرې مرغلرې راټولوم ددغو هڅو په جریان کې دا راته معلو مــه شوه چې واقعاً زموږ داولس په سینو کې داملي شتمني ډیره زیــاتــه پرته ده اوکوم کارچې په دې برخه کې شوی بیاهم لږ دئ .

لــکه څنګه چې لوړه مې یــې یادونه هم وکړه دادرې کالــه کیږي چې دافغانی فولــکلور په ټولولو اخته یم اوډیر موادمې په دې بــرخو کې راټول کړي دي . زماددغو هڅو په نتیجه کې دوې رسالې خپرې شوې چې یوه یــې «فولــکلوري مرغلرې» او بله یــې «دخلــکو تجربــې» نومیږي چې دغه دواړه رسالې تیر کال (۱۳۵۶) کې چاپ شوي دي.

دارساله چې ستاسو محترمو لوستونکو مخې ته پرته ده ددې مواد مې هم په اصلي شکل دخلــکو له خولو راټول کړي کوم تصرف مــې نه دی پــکې کړی او په هماغه ډول مې ضبط کړي دي .

ددې رسالې مواد مې لومړی په دووبرخوويشلي دي : په لومړی برخه کی یې منظوم شفاهي ادبیات راغلي دي چې لنډ ی دښځواتڼ اوداتڼ سندرې دماشومانوسندرې اوساندې پکی راځي .

دوهمه برخه یې منثور شفاهي ادبیات دي چې په هغې کی متاونه دمتلونوقصی اونکلونه راوړل شوي دي اوتردې وروسته بیا دریم فصل دودونوته وقف شوئ دئ .

ددې رسالې موادمولومړی له زیاتروچاپي دغه ډول آثاروسره پرتله کړل او کوښښ مووکړچې څه داسی موادپکی راوړوچې تراوسه نه وي چاپ شوي . دخوست دسیمی داولسی ادبیاتوپه باب تراوسه کوم داسی اثرنشته چې په هغه کی دې دشفاهي ادبیاتومواد په ځانګړي ډول راټول شوي وي .

ددې سیمې دټولو فولکلوري مظاهروټولولوته زیاته توجه لازمه ده چې البته دوخت په پیداکیدوسره به زه بیاهم دې لړۍ ته ادامه ورکړم اودخوست دسیمې فولکلوربه راټول کړم اوپه چاپي شکل به یې خوندي اوله ضیاع نه وساتم .

څرنګه چې ددې رسالې زیاتره برخه مې دنخپلی نیا(دپلارمور) محترمې تروورشافعي اوخپلی محترمې تروورزی نعمت بي بي له خولولیکلې ده نوله درې واړوڅخه زیاته مننه کوم .

عبدالکریم پتنګ

# فهرست



# لومړی فصل

## منظوم گړنی ادب

### لنډۍ

دپښتو ادب یو نامدون او دعوامی سندرو یو ښه ډول لنډۍ او ټپـی دي چې دغه ډول ادبی تخلیقا ت ددې ژبې یـوه خـاصه او ډیره قیمتی ذخیره ده. که چیرې دپښتنو په روحیاتو او ملی خصوصیاتو کی دمطالعې ضرورت پیښ شي ، نو ضرور باید مطالعین د پښتو د عوامـی تخلیق دغې رنگینې برخې ته رجوع وکړي .

دلنډیو په جوړولو او ویلو کی دمیرمنو برخه ډیره درنه او لویه ده. دپښتو د شفاهي ادب دغه غوره او سپیڅلی پانگه تقریباً ترنیمائی زیاته دمیرمنو د قریحو مخلوق دی، او ډیرې ښې لنډ ی د پښتنې میرمنو لـه خوا د جنگو پرمیدان او د عشق په مرحلو کی ویلی شوی دي . (۱)

پښتو لنډۍ هرډول مضامین لري: دعشق او مینې ډیر دردناک رموز دمهجوریو او وصل تأثرات ، د پښتنې ماحول ناخوالی او په جامعه کی

(۱) وگوری دزیری کالنۍ ۱ـ ۶ مخونه ، دپوهاند ښیبی مقاله

شته طبقاتي تضادات ترول په هغو کي سري پيدا کولای شي . دلنډيو په فورمي او موضوعي خواوو باندې څه ليکل د يوه ځانته کتاب ايجاب کوي (۲) زه د لته د لنډيو په دغو اړخو نو زياتې خبرې ځکه نه کوم چې زماله موضوع سره اړه نه لري، او هم ځينو ښاغلو ليکوالو په دې برخه کي مفصلي خبرې ني کړيدي چي د هغو د خبرو تکرار به دلته بي ځايه وي.

ما په خپله سيمه کي داسي لنډۍ راټولې کړې چې تر اوسه د لنډيو په چاپي مجموعو کي نه دي راغلي، که ځيني سره ورته لنډۍ زما په راټولو کړو لنډيو کي پيدا شي، نو هغه به يې اختلافي شکل وي. او س زه دلته لازمه گڼم محکي تر دې چي هغه لنډۍ راوړم په دې برخه کي دنورو محترمو ليکوالو او فولکلور پستانو د زيار يادونه هم وکړم.

کله چي موږ د لنډيو د ټولولو په سير باندې خبرې کوو، نو موځيني داسي پښتو قلمي آثار تر ستر گو کيږي چي پښتو لنډۍ هم پکي خوندې شويدي دلته داخبره، هم دهير ولو نه ده چي دغه لنډۍ شايد په هغه شکل چي پخوانيو فولکلور پستانو او ختيځ پوهانو له اولس نه راټولي کړيدي، په هغه دول نه وي او په خپله شاعر يا ليکوال نه وريادې لنډۍ وي، چي به يې په خپل اثر کي خوندي کړې وي .

په پښتو پخوانيو آثارو کي دحسين (۱۰۶۸-۱۱۱۸هق) او د محمد بياض گدا نه (۱۲۰۰هق حدود) او سيد غلام ننگرهاري په ديوانونو کي موږ د پښتو لنډ-يو نموني ليدلای شو. همدارنگه ځيني نور قلمي آثار هم شته، چي لږ و ډيرې لنډۍ يې ثبتې کړې دي، مگر اساسي کار چي لنډۍ له اولس نه راټولي

(۲) وگوری؟ همدغه مأخذ

شوې وې، په دې برخه کې له نولسمې پیړۍ را په دیخوا پیل کیږي، او موږ دختیځپوهانو په آثارو کې دپښتو لنډیو نمونې کتلای شو، جیمز دارمستتر (۱۸۴۹ــ ۱۸۹۴ع ) په خپل مشهور اثر دپښتونخوا شعر هارو بهار کې دپښتو لنډیو (۸۸) نمونې خوندي کړې دي (۱) ځینو نورو ختیځپوهانو هم داکار کړی دی او پښتو لنډۍ یې له ترجمو سره په خپلو ژبو خپرې کړې دي.

په مستشرقینو کې وروستی محقق پادري جنټرانولـد سن د ډنمارک دی چې دپښتـو لنډ یو سل نمونې یې له ترجمې سره په خپل اثر «سپوږمیه کړنگ وهه راخیژه» کې راوړې دي. (۲). کله چې د زړه سواندو فولکلور-یستانو پام دشلمې پیړۍ له اوایلو نه د افغاني فولکلور راټولولو ته اوښتی دی، نو بیې دپښتو لنډ یو ټولولو ته هم هڅه کړیده او دغه دول کارونه بیا هغه وخت ښه منسجم شويدي چې دپښتو ټولنې په خیرا کاډمیو په ښتني سیمو کې دپښتو ژبې او کلتور او ادب او فرهنگ دژوندي کولو له پاره لیچې را نغښتې دي .

د محمد عمر په نامه یوه سړي (۱۳۱۱ھ ش) په حدودو کې د لنډیو او متلونو او نورو ادبي آثارو یوه مجموعه تهیه کړې، چې قلمي نسخه یې داطلاعاتو او کلتور د وزارت په خطي کتابخانه کې ساتل کیږي .

(۳) همدارنگه مرحوم پاینده محمد زهیر (۱۲۸۲ - ۱۳۳۶ھ) دلنډیو یوه

---

۱- وگورئ د پښتونخوا د شعر ها رو بهار د جیمز دارمستتر ۲۰۹ - ۲۱۴ مخونه د ۱۳۵۶ کال د پښتو ټولنې چاپ .

۲- وگورئ! سپوږمیه کړنگ وهه راخیژه ۵۴ - ۸۶ د پیښور چاپ.

۳- وگورئ! فرهنگ زبان وادبیات پښتو ج ۱ ص ۴۵۰

مجموعه د «غوړشکه د لنډیو» په نامه برابره کړې ده، چې تراوسه نه ده چاپ شوې او قلمي نسخه یې د اطلاعاتو او کلتور د وزارت په خطي کتابخانه کې شته (٤).

د لنډیو په چاپي مجموعو کې لومړنۍ مجموعه د مرحوم محمد گل نوري ده، چې ملي سندرې نومېـــږي او پـــه هغـــې کـــې یـــې د پښتو درې زره لنډۍ خوندې کړي دي(٥)، دوهمه چاپي مجموعه د پښتنې سندرې په نامه د پښتو ټولنې له خوا برابره شوې چې په اوله برخه کې یې تر اتو زرو زیاتې لنډۍ راغلې دي (٦).

دریمه مجموعه د استاد عبدالرؤف بېنوا ده چې لنډۍ نومېږي او وراوړل شوې لنډۍ د انگریزي او فارسي ژبو ترجمه هم لري(٧) همدارنگه په کوټه کې ښاغلي گل محمد خان کاکړ د (گل ټپې) په نامه په یوه درې ټوکېز کتاب کې د پښتو لنډیو پــه زرهاؤ نمونې ټـولې کړیدي (٨) په پېښور کې د تاجرانو له خوا د پښتو لنډیو ځینې مجموعې

---

۴ـ وگورۍ، پښتو نسخې مسوده.

۵ـ دا کتاب په ۱۳۲۳ کال د پښتو ټـولنې له خوا په ۱۷۶ مخونو کې چاپ شوی چې په وروستیو برخو کې یې د اتڼ ناری او بولا لی هم راغلي دي.

٦ـ وگورۍ، پښتنې سندرې لومړی ټوك ۱ ـ ۳۳۰ مخونه د ۱۳۳۴ کال د پښتو ټولنې چاپ.

۷ـ دا کتاب په ۱۳۳۷ کال د راديو افغانستان له خوا په (۱۹٦) مخونو کې په عسکري مطبعه کې چاپ شوی دی.

۸ـ ددې کتاب لومړی ټوك (۲۹۲) مخونه په (۱۹٦۱ کال) دوهم ټوك یې ۵۲۰ مخه دریم ټـوك یـې ۲۰۰ مخه یو په بل پسې په اسلامیه پریس کوټه کې چاپ شویدی.

چاپ شوې چې مشهورې یې دادي :

۱- ټپې ددې مجموعې ټولوونکی سیداکبرصادی (۹)

۲- عقل تمام: ددې مجموعې ټولوونکی جمال دی (۱۰)

۳- مشهورټپې: چې دسلیم پبلشرز له خوا خپرې شوې دي (۱۱) لکه څنګه چې لوړه اشاره وشوه، چې اروپایانو دپښتولنډیو ترجمې وړاندې کړې، دغه رنګه په اردوژبه هم دپښتولنډیو ترجمې وړاندې شوې دي، چې په دغو ترجمو کې مشهوره ترجمه «سرود کهسار» نومیږي او ترهرې لنډۍ لاندې یې اردو ترجمه هم ورسره لیکلې ده (۱۲).

په لنډیو تحقیقي لیکنې : په لنډیو باندې چې داروپایانوله لیکنو وروسته لومړۍ لیکنه دافغاني لیکوالوله خوا دکندهارد طلوع افغان د (۱۳۱۷) په کال (ګڼه) کې وینو (۱۳) هلته د پښتو دنورو شفاهي ادبیاتو ترڅنګه په لنډیو هم بحث راغلی دی، بیاوروسته ځینې نورې لیکنې په دې برخه کې دیرې دي، چې مشهورې یې دلته راوړو :

ښاغلی فارغ بخاري په خپل قیمتي اثر «پښتولوک ګیت» کې په

۹- په دې کتاب کې لنډۍ د موضوعاتو په اساس راټولې شوې ټول مخونه یې (۱۶۰) دی. دحقیقت ټپې ، مومن خان شرینو، چمنې خان، ملنګ، رام داد خان، پت، وطن، جانان غماز، بیلتون ، غم اونورو موضوعاتو په اساس پکې لنډۍ راغلې دی.

۱۰- پدې کتاب کې لنډۍ د ردیف په اساس راغلې دی، ټول مخونه یې (۱۰۴) دی.

۱۱- په دې کتاب هم ټپې د موضوعاتو په اساس راوړل‌شوې ټول مخونه (۱۴۱) دی.

۱۲- دغه مجموعه د ښاغلي محمد یونس سیټهي له خوا راټوله اوترجمه شوې او په پیښور کې (۲۱۸) مخه چاپ شوې ده.

۱۳- وګورئ! طلوع افغان د۱۳۱۷ کال (کل ګڼه) دښاغلي جلا لي مقاله.

لنډیو یو جامع فصل لري . چې په دې فصل کې دلنډیو په باب دتحلیل تر څنګه ډیرې لنډۍ په ار دو ترجمه شوې هم دي (۱٤) .

ښاغلی شفیق وجدان په خپل اثر «ادبیات مردم» کې د پښتو تر پنځوسو زیاتې لنډۍ د موضوع په اساس سره واوړي - چې په پیل کې یې پدلنډیو یو لنډ تحلیل و رسره مل دی (۱٥) .

همدارنګه ښاغلی حبیب الله رفیع په خپل کتاب «دخلکو سندرې» کې په لنډیو یو ښه بحث لري (۱٦) . دفولکلوري ګیډۍ مؤلف هم ددې کتاب په پای کې څو لنډۍ له یوه معمولي تحلیل سره راوړې دي (۱۷) خو هغه لیکنې چې په دې یو کال کې دښاغلي سلیمان لایق له خوا دزیري په مسلسلو ګڼو کې خپرې شوې واقعاً د لنډیو په ژورو تحلیلو نو کې یې اغیزې نه دي (۱۸) . همدا ډول پوهاند عبدالحی حبیبي په خپله یوه نوې لیکنه کې چې « په پښتو ادب کې د میرمنو برخه » نومیږي او په نوې کال کې به یې ښاغلي لوستونکي دزیري په کالنۍ کې واولي په پیل کې د لنډیو بحث لري ، او دغه لیکنه دلنډیو په باب له درنو لیکنو څخه ګڼل کیږي .

همدارنګه په «پښتو څیړنې» نومې کتاب کې دپوهاند دوکتور مجروح میرمن معصومه عصمتي او عبدالرسول امین له خوا په لنډیو دري تحقیقي لیکنې چاپ شوې دي (۱۹) داوې دلنډیو دتولو لو او تحقیق په باب څو خبرې چې ما ولیکلې ، هیله لرم چې لوستونکي ترې استفاده وکړي . اوس به نو زه خپلې راټولې کړې لنډۍ تاسې ته وړاندې کړم :

---

۱۴- وګورې پښتو لوک ګیت ۸۳- ۲۰۳ مخونه ۱۹۶۱ کال دلاهور چاپ

۱۵- وګورې ! ادبیات مردم ۱۳٦- ۱۴۰ مخونه

۱٦- وګورې ! دخلکو سندرې ۹۸- ۱۱٦ مخونه د۱۳٤۹ کال دتاریخ ټولنې خپرونه

۱۷- وګورې فلکلوري ګیډۍ ۱٦۳- ۱٦۹ مخونه

۱۸- د۱۳۵۵ کال دزیري ګڼې .

۱۹- وګورې ! پښتو څیړنې ، ۱۱۳- ۱۷٦ مخونه پښتو ټولنه ۱۳۵٦

۱ـ آسمانـه کښ و هه وا ر یـږ ه
لـیلی ببـری کـر لی دي‌چی پښه شینه

۲ـ اختـر نـژدې دی ر وژه‌لا ره
لیلی به بیا په‌لاسو سر ې نکر یزې زد ینه

۳ـ بدن د ې باغ ستر گـی گـلو نـه
باغ ته‌دې گورم تماشی‌دگل کـومـه

٤ـ بنگړې‌می‌وو، په‌لاس‌می نه کـړ ل
دمیز اگل‌سره‌جوړ یزې تش‌لا سو نـه

۵ـ دا بیـگا نـی و ریـجی پستـی کـه
ممیز په گله که‌سبا تور وغرو ته ځو نـه

٦ـ په نو بخی سی می او ر پسی کـړ
چی په‌خولی (۱) کیندلی بیادلو زې‌مرینه

۷ـ په‌جگوغرو کی دې بند ي کړ م
او س‌خومی‌پر یزده‌غجره (۲) گل‌شوی‌دینه

۸ـ په جگو غـر و به سـره خـیز و
په زنـگنو به‌مـاتـووزیـړي گـلونه

۹ـ په‌جـگوغـرو ر ا نـه پـنـاه یـی
او ریځ خو نه یم‌چی په‌غرودر نگه‌شمه

---

۱ ـ سکنه ۲ بوتی ، چی سپر لی کی گل کوی .

۱۰ـ تـر داغنـج غنج پنی دې جار شـم

به نیمو شپو یی غنجوې بی خو بهشو مـه

۱۱ـ پهدې زړي ورخوړی (۳) گـلـ کـی

چی درې گرب شی زړه بیخه (٤) ناستهوینه

۱۲ـ پهسپینو دارو در تـهخـانـد م

دننه زړه می د بدی کړی مصلحتو نه

۱۳ـ پهسره سالـو مـخ نـه پټـوې

پـهمـین قـدر زیـا تـوم مـخ پټو مـه

۱٤ـ پهشمل پـورې واده مـهشـی

پهشمل پـورې یتیمانـی و د و یـنه

۱٥ـ پـهعـا شقـا نـو ز یـرې وکـئ

وصال پاچاشو بیلتون قید د عمرو شو نه

۱٦ ـ په مغلـگی کی و ینی پـنډې

نـه یی مرغان خوری نه یـی څمکه وچو ینه

۱۷ـ په کټ کی دوې گو تی څای را کړه

لکـهلرم پـهدیـوالـه را غـلی یـمه

۱۸ـ په کمر بند بهدې څو نډې شـم

که په کار تو سو می سا تلی شی مینه

---

۳ ناروغی ٤ بوځه

۱۹- چې په‌کرکۍ مې سرجوت کړو

پلارمې ورېږ روپۍ گڼي ماور کوینه

۲۰- په‌ کلي پو لیونی نشته

شینکۍ پرتوگ‌مې په‌ورنوخوله‌لگوینه

۲۱- په‌لاره‌ځي درپسې گورم

جگه ځوانی دې مزه ماته راکوینه

۲۲- په‌مخه دوې شین ختي راغلي

هکي پکي‌شوم چې دکومې یاري کړمه

۲۳- ترلي مې واړه تربرو، وکړي

زه‌یې ځینۍ (۱) کړم په‌وطن یې گده کړمه

۲۴- تښې سرې به میړه نه‌کم

چرگي یې زدن‌خوړلي نه‌مابه‌شړینه

۲۵- ته‌دا خنډر په‌ صبا راشه

زه‌به‌در ووځم توري‌سترگي سره‌لاسونه

۲۶- جانانه لاړشه سو دا راوړه

ماته نکر یزې سلطاني راوره مینه

۲۷- جانانه لاړې مسافر شوې

کښېنت دلونگو به‌مې ځوك ريبي مينه

---

(۱) ځینۍ : ورکه

۲۸ ـ جانانه هغه وخت در یا د کړه
چې لارې نه وې ګړ نګو کې ګر ځیدونه
۲۹ـ جانانه خدای ته ګو ره مه څه
داسپینه خوله به هر ه شپه شپه در کو مه
۳۰ ـ جانانه و لی مسا فر شو ې
داستاله لاسه په اورو سوم مره به شمه
۳۱ـ ـ چې په لستو نی کی خو له غوا ړې
لستو نی تنګ دی، ګل میخې نارې و هینه
۳۲ ـ ته د ګور ګورو په وخت راشه
ګور ګورې تورې خو ه به سپینه در کو مه
۳۳ـ چې سپینه یې مز دې ښته
لکه دخلې خو اته واورې تو یې وینه
۳٤ـ چې کټ ته خیزې بسم الله که
دلیلا کټ دجنغو زی دی مات به شینه
۳۵ـ د ا لو نګین به دې تالاشی
وړو کې مه کړه دباز ار په وړ کیومینه
۳٦ـ ځو انانو ځان ته کفن جوړ کړل
ما په داسپینه خولګې دیر وژلی دینه
۳۷ـ خت می لندی ونیسه مورې
ابک می نوی کیت وهی خرې به کمه

۳۸- چې خت مې وکړ لیکې لیکې
په هره لیکه کې یې اوردې وینې سومه
۳۹- خدای دې په داسې ځای کې راکه
چې دټټر روپې دې ګډې ودې کړمه
٤٠- خدایه داپلار مې دوزخي کړې
په ټول جهان کې یې سپین زیرې ته ورکړمه
٤١- خوله دې رانکړه رانه لاړې
خدای دې په‌سروجامو کې کونډه که مینه
٤٢- داختروړځې رانزدې شوې
جانانه راوره شنې نکریزې په پنډونه
٤٣- دجلې ونه دبادام ده
چې نرې بادشې سریې ځمکې ته راځینه
٤٤- دد نیا عمر نیمه خوادی
څوك چې دناز خنداکوي نادان به وینه
٤٥- دسترګو ټول نظر په ما کړه
لکه ویشتلی زرکه ګوښې ناسته یمه
٤٦- دمسافر وکډې بارشوې
ورته په لوړشه چې کوم ځای یې اړوینه
٤٧- دادول په سازوهم ناسازې
چې یو دې نسې بخملې ګوتو بنډونه

٤٨- زما دی سوی زړه ته گوره
فکر دې خپل دی بیابه وکی ارمانونه

٤٩- زماپه سترگو کی دې کوردی
چی چیرته گورم هلته تاوینم مینه

٥٠- زړگیه چا له لاسه ژاړې
راځه چی دواړه ننواتی ورته ځونه

٥١- زړگی زماله لاسه تللی
چیرته چی یاروی دابه هم ورسره وینه

٥٢- زه چی د یار غیږې ته لاړم
سپینی سپوږمی راپسی لیږ ولگونه

٥٣- زه د آشنا په جمع راغلم
چلم یی دك ژړنی په ښکارولی دینه

٥٤- زړه خو می داسی راته وایی
په سترگو پټ کړه لرې لرې وطنونه

٥٥- زړه خو می ستړې ستړې کیږې
یامی مرگی دی یا ورکیږم له وطنه

٥٦- زما په برخه دې لندون (١) کړ
زه چی لندون هوښیاروم زړه به شمه

٥٧- زما په برخه دی گیډړ کړ
گیډړ خو چرگی تښتوي ما شرموینه

١» لندون: بی عقل دروس

۵۸ - زما ترلی تربورونه د یر دي

که زه سرتورې پکې ځم پته به شمه

۵۹ - ستا له یاری نـه می تو بـه ده

که د شید و په سر پیروی شې مینه

۶۰- سپوږمیه جهان خوښې دې وکړې

سپینې سینې درته پرتې په پا لـنـګو نه

۶۱- سترګې د باغ بانه دې غنې

عاشقانغنې مـا توې باغ شکوینه

۶۲- سترګې دې زړه ته رانږدې که

چې پکې وینې دسرووینوډنډونه

۶۳- سر می نري ګنډه که مو ري

پورې کړکې ته می ترلی راغلی دینه

۶۴- سر ته دې غټه تیزه کیږده

پردی وطن دی یاره نشته بالښتونه

۶۵- سلام می په هغې جلې وایه

چې سرېې رنګ وي دیواله ته ناسته وینه

۶۶- سلام می یارته نه رسیږي

په مخ څوکـې دبیلتانـه ولاړې دینـه

۶۷ - شپه کی دیارپه کلي راغلم

په خـوب ویده آشنابه څوك راویښـوینـه

۶۸ ـ عاشق بی شکه جنتی دی
چی تمامی عمر په صبرتیروینه
۶۹ ـ اې کلیه ننګ راباندې وکړئ
دلاس بنګړي مې ماتوي ماورکوینه
۷۰ ـ لا کوړ کی چړګی ناستی نه دي
زماورمینجه یاره خوب دې زنګوینه
۷۱ ـ که تندی ووهی که ژاړې
په خرکی دره به دې نه درنوزمه
۷۲ ـ که څوک ببري لښتی غواړې
زمادلیلاسترګی ببري لښتی دینه
۷۳ ـ که یواړې مرګ وای بیاژوندون وای
ژبیوبه جګی وای تبی په زنګنونه
۷۴ ـ لیچی می دکی دبنګړیو
دمیزاګل په سر بهیویوماتومه
۷۵ ـ لیلا په لګدکی جامی مینځی
سپینکی وښی یی لکه وری الدراچی کرینه
۷۶ ـ لیلا په باغ کی سره منه ده
دوس موزې یی په پښو شوندوخورینه
۷۷ ـ دې دندانه کوزشه خرې راکه
زه دجانان په شان څیره کی جورومه

۷۸ ــ راځه چې دواړه ملنګان شو

په زيار تو به سبورو و ګـرســرو نـه

۷۹ ــ روپۍ دې ته لي سبې روپۍ دي

دمنځ روپۍ دې زه په زړه ويشتلی يمه

۸۰ ــ ماخـواغـز ي کـړلـی نه دي

آشنا زما په لوري نه زدي قـدمو نــه

۸۱ ــ مادجانان غيږ کې حلال کړې

چې ګلابی صورت يې تول په وينوشـينه

۸۲ ــ ماد جلی دغيږ منـګی کـې

چې په سينه مې خوزوي سرته مې وريـنه

۸۳ ــ زمادچار ګل څلور پرې دي

څلور به نور ې کړم چې غبر ګی لمبی کړينه

۸٤ ــ مـخ دې دخــدای په نــوروډک دی

زه دثواب لپاره خوله پرې لـګومـه

۸۵ ــ مـرګــيه دومـره معطـلی کــه

جوار به بمبلك دې ببري توري غوتۍ دينه

۸٦ ــ ميزاګــی بيا په دربی راغــلو

په لمن ګی کې چا توتان ورکري دينــه

۸۷ ـ مسافـرځـې کلـه دریـږي

لوښې کـودي یې بیـګانې تـرلــې دینـه

۸۸ ـ مسافــرمه وژنــه مــرګــیه

وچه مرۍ خوري سرپه تـیزه لـګـوینـه

۸۹ ـ مین مې کړې خوله مې درنه کړه

داسې مې وچ کړې لکه دروځې په بندونه

۹۰ ـ میـنه کـه هرځو پټـه ســاتـم

دا زیـړې رنګ مـې رسوابې تـه رسویـنـه

۹۱ ـ وراره راځـه بـیـره راو کـه

زه دشلــیدلــې پان پــه ســرولاړه یـمه

۹۲ ـ وروره راځه بـیـره راو کــه

ختې مې کــړې ددیــدن کـړ کې تـپـمه

۹۳ ـ ورورمې پـه جمـع کې معلوم دی

توریې پټکې سره یې ګلان تـومبای دینــه

۹٤ ـ ورورمې په جمع کـې ګـډیږي

ددسمالـوپیـڅـې مې یـارنیـولـې دینــه

۹۵ ـ وړوکی ما په یاري پوه کـړې

اوس دې په تورو زلفو نورو هې لاسـونـه

٩٤ ــ وبني په لاس گوتي پـه گـوته

زرگره تولـه دې يارى ته جوړه کـړمـه

٩٥ ــ ولې زمانـه مـسروريـى

راځه چې خط دغلامۍ در کړم مينه

٩٦ ـ نه به اوښر دورڅي گل شي

نه به زمازړ کې له غمه خالـي شينه

٩٧ ـ چې نه داريږم نـه شرميږم

خودزمري پهشان دمدم درته کومه

٩٨ ـ يارمې پهشنوخالومين دى

وريندارى ووهه يوکم شپيته خالونه

# دماشوما نو سندرې

دپښتو دګړنی ادب لمن خورا پراخه ده ، کــه چیرې یو پلټو نکی دپښتنو په ټولو سیمو ګرځی نو په لس ګونو ډوله سندرې به په کلیو اوبانډو کی ومومی. دغه ډول سندرې زموږ دشفاهی ادب ډیره خوندوره برخه جوړوی اوزموږدخلکو کره وړه، اجتماعی روابط اوملی تاریخ ترې ډیرښه څرګندیږی . زه چی دخو کالو را په دې خوا ددغه ډول کلتوری شتمنیو په ټولولو بوخت یم ، او په دې لړکی می پکتیا دخوست سیمی دغه ډول سندرې ډیرې را ټـولی کــړې دی ، پـه دغو سندرو کی ماد ماشوما نو سندری هم راټولی کــړې دی، چی تر یوې لنډی څیړنی وروسته یی وړاندې کـوم :

دغه سندرې خاص دماشومانوله خوا په بیلا بیلو وختونو کی ویلی کیږی کله چی بوماشوم په نجبرو راشی او دځمکی پر مخ آزاد قدم وهی اود کیډو په کوڅو کی دنورو ماشومانو سره په لوبو اخته کیږی ، نـو په دغه وخت کی دغه سندرې چی له ډیرې پخوا په دوې کی شته او دما شومانو ترمنځ خورې دی نورماشومان هم پسی زده کوی او سینه په سینه له یوه نسل څخه بل نسل ته پــه شفاهی ډول انتقال مومی . هــر

ځومره چې یوماشوم کوچنی وی به‌هماغه اندازه په لزوسندرو باندی پوهیږي‌مګرځومره چې‌یې‌سن لوړیږی‌اود کور کلی له‌نوروماشومانو سره یې تګ راتګ مینه اولوبوکی ګډون زیاتیږی هماغومره ددغه ډول سندروسره زیات اشناکیږی اوداسندې زده کوی .

ترکومه ځایه چې‌ماته ځرګنده ده، د افغانی فولکلوردنوروبر- خودرا ټولو لوټرڅنګه دماشومانو سندری هم تریوې اندازې پورې دافغانی فولکلوریستانوله خوارا ټولی شوې دی .

دماشومانو دسندرویوه وړه مجموعه دپروفیسرسیال کاکړله خوا ترتیب او چاپ شویده (۱) او ددغه ډول سندروځینی نمونی یې پکی خوندی کړیدی . ښاغلی حبیب‌الله رفیع هم‌دخلکوسندری نومی‌کتاب کی سربیره پرنوروسندرو د ماشومانـوسندری هم راوړې دي (۲) همدارنګه ښاغلی محمدنـوازخان طایرپـه ۱۹۷۳ع کال کی د پیښور دپښتوا کاډمی‌دپښتومجلی په ځینوګڼوکی(۳) دماشومانو دسندروځینی نمونی خوندی کړی دی ،اوهم د کوټی داو لس مجلی په‌ځینوخاصو ګڼوکی (دافغانی فولکلور په برخوکی) دفولـکلور دنـوروڅانګو دخیړلو په‌څنګ کی‌دماشومانودسندروځینی نمونی هم‌خوندي شویدی. اوهمـدا ډول ځیـنـی نوری وړی اولـوبـی مقـالـی هـم دپښتوپـه

(۱) وګوریء! پښتنی فولکلور ۲۸،۴۸، ۶۳ مخونه د۱۹۷۱ع کال دکوټی چاپ
(۲) دخلکو سندرې ۵۳، ۵۹ مخونه د(۱۳۴۹ کال) چاپ .
(۳) وګوریء دهمدغه کال دمارچ نه تراګست پورې دپښتو مجلی ګڼی .

خپرونو کی چاپ شویدی . محمدولی ځلمی په خپل کندهارنـومی کتاب کی دکندهار په سیمو کی دکوچنیانو ترمنځ دخورووروسندرو ځینی محدودې نـونـی خوندي کړیدي (٤). دلته زه دماشومانو دسندرو ځینی هغه نمونی را ورم چی ماپه خوست کی راټولی کړیدي اوتراوسه نه دي چاپ شوی.

هغه وخت چی آسمان نه ښځی اوریځ نه بیخی شین وی او ولږ باران اوریږی، اوماشومان په دی عقیده وی چی آسمان نور شین کیږی اوباران هم دریږی، نودوی دغه باران ته دګیدړی واده وایی، ځینی خلك دغه باران ته دشنه آسمان باران هم وایی. په دا وخت کی دکلی ماشومان سره ټولیږی کله چی باران پیل شی نو دوی ټول یوځل سره په نار وشی او په خپلو منځو کی سره ټنبتی، منډې رامنډی وهي اودالاندې سندره هریو کوچنی په خاص مهارت په ډیر جګ آواز سره وایی :

ګیدړه ودوی
په خرکي یـی سپرو ی
چی زمابرخه ونه کړ ې
خدای دې ژروشرمو ی

هغه وخت چی باران دغرونو په برخه کی په اوریدوپیل وکړی اوپه نوروبرخوکی هم اوریځ دومره سخته شی چی نور باران په

(۴) وګوری، ! کندهار ۲۷۰ـ ۲۷۱ مخونه د۱۳۵۱ هش کال دکابل چاپ

اوریدو پیل کوي ، نودلته بیاماشومان سره توليږي. کله‌چې باران په دغوسیمو کی په اوریدوشروع وکړی،دوی هم سمدلاسه ناری‌وهی اودکورونوپرخواووباندې‌ځی، اوداسندره هر یوماشوم په لوړ آوازوایي:

بارانه مه اوریږه
په‌جګوغرواوریږه
زه به‌کلداره روپی درکړم
حکسم جانی ته پښی راوړه
ګل پیالی پیالی راوړه

کوم وخت چی ماشومان دورځی لوبی کوی . بالخصوص دمازیګرله وخت څخه ترماښامه پوری ددوی دلوبو دیرښه وخت وی، نوکله چی وربانديې ماښام شی اونورخپلو کورته ځی دلوبی درنګیډلو سره جوخت داسندره تول په‌داسی حالت کی په جګګ آوازوایی چی په منډوسره دکورونوپرخواروان وی :

څوک چی څوکورو ته
مرغی لاړی غارو ته

هغه وخت چی ماشومان لوبی‌کوی او دلوبوکولو په وخت‌کی دوه تنه دلوبی په موضوع اویاکومه بله خبره سره په جنګګ شی اونه سره بیلیږی نورماشومان یی سیل کوي داسندره ورته‌وایی :

جنگه جنگه تودشه

تاته به نیښی وکړم

زه به دی ننداري وکړم

کله چې اختر را نږدې شي او د نکریزو شپه را اورسیږی ، نو هر ماشوم په خپل کور کی لاسو نه په نکریزو سره کوي . کله چې نکریزی په خپلو لاسو و تپی ، نو د با ندې ټول ماشو مان را اووځي ان د دې له پاره په منډو را منډو پیل کوې چې نکریزې وچې شي ، او د خپلو منډو را منډو په وخت کی دا سندره هم په جګ آواز په خاص طر ز سره وایی :

لاسه لاسه سور شه

سبا ته د زیړې غوا په کوچو کی نسکور شه (۱)

کوم وخت چې داوړې د غنمو د رمندو نه خلاص شي ، او ټول خلک خپل غنم کور ته یوسی ، نو هلته د کلي ماشو مان په داسې حال کی چې دا کشړو سره د لر گیو سوټی هم وي او دیوه تن سره یې یو اوږد لرگی وي او په سر باندې یې یو سور دسمال یا رخت هم تړلی وي ، راټولیږی او د ( امین کئ ) په نوم دهر کور دروازې ته دریږی او دا سندره په خاص مهارت سره ټول په یوه آواز وایی :

امین کئ امین کئ :

هله بابې چې تراټې ته لاس کې

(۱) دخوست په سیمه کی داسې رواج دی چې دا ختر په ورځو کی په میوکی غتې وریجې پخوی او دغوا غوړی او کوچ ورته ویلی کوی او دوریجو په منځ کی یې اچوی دلته هدف دغوړ یوخوړل دی.



مابه خلاص کی بابیٔ

امین کئ امین کئ.

کوم وخت چی داماماتو په میاشت کی هغه شپه راشی، چی دوی پکی وژل شوی دی . دپکتیا دخوست په سیمه کی دې شپې ته (ښه شپه) وایی ټول ماشومان سره ټولیږی او یوه ښځه د(حسن، حسین) دوژلو نقل ورته کوي، او وروسته له هغه دالاندې سندره په ډیر خوازه او غمګین طرز سره هغه ښځه ورته وایی، بیا بی ماشومان ورپسی تکراروی :

ښی شپی ښی شپی - تابه څوك ر ڼا کوی

حسن حسین ژنی می مره دي - جای خوب ز نګوی

جلی خوب ز نګوی

هغه وخت چی زانی ښکته او یا پورته ځی اوماشومان یی آوازاوری نودکلی ماشومان ټول سره ټولیږی . که چیری ماشومان وغواړی چی زانی درسی په شان اوزدې شی نوداسندره هریو ماشوم په لوړ آواز په خاص طرز سره وایی :

زانی زانی پری وغاړئ

زانی زانی پری وغاړئ

او که چیري وغواړي چی ګدې ودې خپل تګ وکړی بیانو داسی وایی چی:

زانی زانی ګـډې ودې شئ . زانی، زانی ګـډې ودې شئ

ځینی وختونه داسی هم کیږي چی دوه ماشومان او یاتر هغی زیات په متیازو (جواب چای) باندې په ازه فاصله کی سره کښینی، نو یو بل

ته نه گوریء که کوم یوه بل‌ته و کتل نومقابل ماشوم داسی سندره ورته وایی :

مه‌کسه مامه کسه (۱)
بابا کسه
پلار په جنازه کسه

کوم‌وخت چی‌باران دریدلی وی، دهغه‌نه‌وروسته بیاشنه زرغونه‌پیدا شی اوآسمان کله تول اوربخ او کله کله تپی‌تپی وی، یعنی که لمر ښکاره او کله‌په‌اوربخ کی‌پټ شی، نوماشومان راووزی اوداسندره هریوماشوم وایی :

شین‌ بی کې زرغون یی کی
دشنه غوایی لړمون یی کی
داوسپنی تلبریی کی
دپکړ سري په سریی کی
زموږ جونه په هنډې کی
دنورو جونه‌کونډې کی

که‌چیرې ماشومان همیشه‌گډلی (جواری)خوري اویوه‌ورځ ښه دودۍ‌ورته‌ورسیږي، بیانوداسندره‌وایی:

گډلی گډل بیلګ
نغن نغن بیګګ

۱» کسه : گوره

روته سم سمی ده

غوښو و ريجو ښه مړی ده

همدارنګه که چیري ماشومان ګدلی خوري او یادکور لو یان خپلو ماشومانو ته ګدای ورکوي، نو دوی بیاي داسندره ورته کوي:

ګدلی

پلار دي ورته غای

کوم وخت چی ماشومان دژمی په ورځو کی لمر ته ناست وي او آسمان کله اوریځ او کله ځای ځای شین لمرشی، نو کله چی آسمان اوریځ کیږی نو ماشومان داسندره وایی:

ستر ګی ستر ګی دبلی و وهه

لو ښه زامن دي ساره ست کړل

# ساندې

دا هغه ناري دي چې د ښځو له خوا په مړي باندې ويلې کيږي. دا سندرې عموماً ديوې ښځې او يادېږو ښځو له خوا په وار سره په داسې حال کې چې هره يوه د سندرې په آخر کې دهې، هې ياوئ وئ او ياائ ائ د تکو په زياتو لو سره څينې منظومې وايي او په دې توگه د نورو ښځو ژړا لا پسې زياتوي. د دغو غړانگو په اوريدو سره بې زړونه له غريو ه ډکيږي او په ژړا پيل کوي. دا ساندې په يوه خاص طرز په لوړ آواز سره و يلې کيږي، د ساندو په باب کوم داسې اثر نشته چې په خاص ډول دې ساندې پکې چاپ شوې وي، يوازې د خلکو سندرې نومې کتاب کې د ساندو يو فصل شته او ټولې يې پنځلس ساندې پکې راوړې دي. (۱)

همدارنگه د فولکلو رې گيډۍ په کتاب کې هم د منگلو دسيمې غړانگې (ساندې) راوړل شويدي (۲) .

ښايي په نورو مقالو کې بې هم په ضمنې توگه څه يادونه راغلې وي او يا يې د فولکلو رې سندرو د معرفي په سلسله کې کومه نمونه خوندي

---

۱ـ و گورې د خلکو سندرې ۱۷۸-۱۸۲. مخونه

۲ـ و گورې افولکلورى گيډۍ ۱۸۲ - ۱۸۳ مخو ۱۳۵۵ کال چاپ

شوي وي. دلته زه‌هغه‌ساندي‌ راوړم‌چي مادخوست په‌سیمه‌کي‌راټولې کړيدي اوتراوسه لاچاپ‌نه‌دي:

جدايي‌شوه لاړې‌دوې‌شوې .
مرګيټه‌کي‌حق دی‌جدايي‌مي‌ژړوينه‌هي ، هي

* * *

جدايي‌شوه‌لاړې‌دوی‌شـوې .
دجدائي‌په ليارکي‌ګومبې‌ناسته‌يمه هي،هي

* * *

دګورستان سيورې‌کږې شوې
ووړکي‌پراته‌دي‌تورې‌خټې‌غورمتو نه‌هي، هي

* * *

دګورستان خونرې‌لاړوه
زه‌دابلك ديدن ته تلم‌بيابه راتلمه هي،هي

* * *

ماماپه‌لوړه غونډی کښيږدئ .
مخ‌يې‌خرګند کړئ‌چي‌نرې باديې وهينه هي،هي

* * *

بابك په‌لوړه غونډی ښخ کړئ
چي‌اولادونه يې‌هميش‌زيارت ته ځينه هي،هي

* * *

بابلك پەلو رەغو ندى كښيز دئ
چې اولادونه يې ديدن تەورته ځينه هى، هى

* * *

پەستر سهار نرى آوازشو
پلانى ته سپينى جامى كړې خاوروته ځينه هى، هى

* * *

دگورستان ترغاړه يې كښيز دئ
شوندې يې ښكل كړئ بيا به بى تورى خاورى خورينه هى، هى

* * *

پلانى ځنى زړى نه كړى
ځنى به نه گورم دنجونو په منځونه هى، هى

* * *

دساندو دغه برخه دلنډيوسره ورته شكل لرى، مگر پەاخر كى دهى هى وئ وئ يااى ائ غږ انگەورسره زياتيږى چې فورم يې دلنډيوله كالب نەوباسى .

ساندى پەخوست كى پەيومسره ييزه او دوه مسره ييزه شكل و يلى كيږى:

# دښځواتڼ او داتڼ سندري

دخلکو دهنر دمختلفو څانگو څخه یو څانگه اتڼ او نڅاده . د خلکو دهنر دغه پرکینمه او مسته څانگه آن له اسلام نه په دمخه پیر یو کی په آریایی قومونو کی موجوده و، ځینی آریایی قومونو دخلقی هنر دغه خوزوونکی اومسوونکی خواله لاسه ورکړی خو په پښتنوکی اتڼ دخپل تول کم و کیف سره موجوددی(۱) .

په پښتنی سیمو کی اتنونه او نڅاوی دښځواو نارینه وو له خوا ترسره کیږی، ښځی ځانته بیل او نارینه بیل اتڼ لری ، دنرینه او ښځینه اتڼ په شکل او خصوصیاتو او حرکاتو کسی ښکاره توپیرو نه لیدل کیږی .
پښتنی ښځینه او نرینه اتڼ مختلف ډولونه لری چی زه د خپل کار د اصولو او شرایطو له مخی دهغوله راوړوتیر بږم او یوازې دهغو لیکنو او آثارو یادونه کوم چی داتڼ په باب څه موادلری :

۱ـ دخلکو سندرې: دخلکو سندرې مولف ښاغلی حبیب الله «رفیع» چی کوم بحث داتڼ په ناروکړی، هلته یی داتڼ په باب هم څوتکی څرگند کړي دي . (۲)

---

(۱) وگوریء محلی نڅاوی دمحیر ندوی روهی سریزه
(۲) وگورې، دخلکوسندرې ۷۰ـ۷۵ مخونه .

۲ ـ پښتنی ملي اتڼو نه او محلي نڅاوې : په دغه اثر کې د پښتنی سیمو د ځینو برخو اتڼونه په اماتوری ډول بیان شویدی (۳) .

۳ـ فولکلوری سوغات : په دې کتاب کې داتڼ نارو در اوړو تر څنګه د اتڼ ځینې شکلونه هم ښوول شوی دی (٤)

ښایی په ځینو نورو لیکنو کې هم د پښتنی اتڼ په باب خبرې وی چې زه یې له راوړو تیر بزم . اتڼ په پښتنی سیمو کې د خپلو مخصوصو حرکاتو تر څنګه ځینې سندرې او سرو کې هم لری چې داتڼ په خاصو مراحلو کې ویلی کیږی . دغه سرو کې په پښتنی اصطلاح نارې بولی مایه دې لیکنه کې د خوست د سیمې یوازې د ښځو اتڼ او د هغه شکلونه څوندي کړي نارې او سندرې می یې هم راوړې دی .

ښځې د خوشحالیو په ورځو کې بالخصوص د اختر ، میلې ، واده او نورو ښادیو کې خاص او ډول ډول اتڼونه او سندرې کوي ، مګر دوا ده دور څواتڼ یې په اووه ډوله دی چې لاندې راوړل کیږي :

۱ـ دولاړې اتڼ : کوم وخت چې ښځې د ناوې کور ته ورځی نو پدې وخت کې دولاړې اتڼ کوی چې په دې ډول دی : ټولې ښځې ولاړې وی یوه اویادوې ښځې ورته ګډیږي نورې ښځې تیا که ورته وهی همدغه یوه یادوې ښځې د ګډیدو سره یو ځای سندرې هم ورته

۳ ـ دغه رساله په ۱۳۵۲ش کال د ادب او فلکلور د ټولنې له خوا په ۲۸ مخونو کې چاپ شوې ده .

٤ ـ وګوری ، فلکوری سوغات د پروفیسر سیال کاکړ ۲۳ ـ ۳٤ مخونه د ۱۹۷۸ع کال دکوتې چاپ .

وایی، اوداسندري په‌خاص طرز سره‌ویل کیږي. یوه ښځه دول یادریا ورته وهی داتڼ نه وروسته بیاناوې جگوي او د میره‌کور ته یې راولی هغه سندره چې دولاړې اتڼ په وخت کې یې وایی داده :

دا ځای دګلبدن دی
قدم زه اخیستی نه شم
۱ ـ توروتوپکو جوړونکیه
قدم زه اخیستی نه شم
که‌یارمی مړشوخون به یې‌ستاپه غاړه وینه
قدم زه اخیستی نه شم
داځای دګلبدن‌دی
قدم زه اخیستی نه شم

* * *

۲ ـ یه خدایه‌کوم یوپکی خوښ کړم
قدم زه اخیستی نه شم
مرګی بیلتون راته جوړه راغلی دینه
قدم زه اخیستی نه شم
داځای دګلبدن دی
قدم زه اخیستی نه شم

* * *

۳ ـ ځینی دي بیا شنلی راوړي
قدم زه اخیستی نه شم

وور کيه مين يی که مرگی شنلی دينه
قدم زه اخيستلی نه شم
داځای دگډيدن دی
قدم زه اخيستلی نه شم

**۲- د روانيدو اتڼ**

کوم وخت چی ښځی دناوې کورته ورځی او هغه لاره چی دناوې دکوراو دميره دکورتر منځ موجوده وي. په دې ټوله لارکی اتڼ کوي. په دې اتڼ کی ټولی ښځی ورو ورو روانی وي، يوه يادوې ښځی په لاره کی ورته ګډيږي، يوه ښځه ډول يادريا ورته وهی، دهغی يوې يادوو ښځو له جملی ځخه چی دنورو ښځو په مخ کښی ګډيږي. يوه ښځه سندره هم ورته وايی. نورې ښځی ټاکی ورته وهی، ترهغی چی د ناوې کورته وررسيږی، هغه سندره چی په دی اتڼ کی ويله کيږی په خاص طرز لوړ آواز او نرمه غاړه وي. داسندره په دی ډول ده:

په ورو ورو قدم
په هر قدم زيري ګلونه

* * *

۱ - مين می کړی ځوله می درنه کړه
په هر قدم زيري ګلونه
داسی می وچ کړی لکه دروځه په بندونه
په هر قدم زيری ګلونه

په وروورو قدم
په هر قدم زیری گلونه

* * *

۲ـ تردا بوری توپك دې جارشم
په هر قدم زيري گلونه
ترلی تادی نیغه زه درپسی ځمه
په هر قدم زیری گلونه
په وروورو قدم
په هر قدم زیری گلونه

* * *

۳ ـ په جګوغروکی میمرگی کی
پــه هر قدمزیری گلونه
چی جنازهمی دښښترخانگی وهینه
په هرقدم زیری گلونـه
په ورووورو قـدم
په هرقدمزيري گلونه

۳ ـ دناوی په کورکی دولا ړی اتڼ : کوم وخت چی
تولی ښځي دناوې کورته ورسيدې، نودناوې دکورپه انگړ کی تولی ښځی ديوې گردې دايرې پهدول دريږی اويوه په بله خپل ښی لاس په اوزوورسره ږدي ،یوه ښځه چی د اتڼ په مخکی ولاړه ده سندره

اخلي . نوري ښځي يې ورپسې نيسي ، يوه ښځه ددغې دايرې په منځ کې ولاړه وي دول يادر باورته وهي ، هغه ښځې چې په اتڼ کې ولاړې وي ، شميريې کله کله تر پنځوسو ښځوپورې رسيږي ، هغه سندره چې په دې دول اتڼ کې ويله کيږي داده :

لومړۍ سندره : پيزوانه ته چې په سر وشوندو زنګيدې ــ بې خوبه ومه

۱ ـ پيزوان يې جګ کړه خوله يې و اخله

پيزوانه ته چې په سر وشوندو زنګيدې ــ بې خوبه ومه

ګونديې داځاى دى ميز اګل ته پاسې شينه

پيزوانه ته چې په سر وشوندو ځنګيدې ــ بې خوبه ومه

پيزوانه ته چې په سر وشوندو زنګيدې ــ به خوبه ومه

* * *

۲ ـ نتکې پيزوان سره بديږي

پيزوانه ته چې په سر وشوندو زنګيدې ــ بې خوبه ومه

پيزوان په ګرم دى په سپينه خوله وهي تاوونه

پيزوانه ته چې په سر وشوندو زنګيدې ــ بې خوبه ومه

پيزوانه ته چې په سر وشوندو زنګيدې ــ بې خوبه ومه

* * *

۳ ـ دمخې لرې شۀ عالمه

پيزوانه ته چې په سر وشوندو زنګيدې ــ بې خوبه ومه

مادچار گل په پرودیروژلی دینه

پیزوانه،تهچی پهسروشونلووز نگیدې–بی خوبهومه

پیزوانه ته چی په سرشونلووزنگیدې– بی خو به ومه

دوهمه سندره :ـ دا سورسولی د یـوې و نی

نری شمال د پیغلی د لمنی

* * *

۱ ـ جلکی دباغ د لوری راغلـه

نری شمال د پیغلی دلمنی

پهسپینهخوله یی شو تالان خور لی دینه

نری شمال د پیغلی د لمنی

دا سورسولی د یوې و نی

نری شمال د پیغلی دلمنی

* * *

۲ ـ وئ د کونلې زویهمو تینـگیه

نری شمال د پیغلی د لمنی

په سم بازار کی دې په سپی نسکوره کړمه

نری شمال د پیغلی د لمنی

دا سور سولی د یوې و نی

نری شمال د پیغلی د لمنی

* * *

۳ ـ خاونده دا به دې رضاوي
نرى شمال د پيغلى دلمنى
چې دځواني عمر په غم کې تيروم
نرى شمال د پيغلى د لمنى
دا سورسولى د يوې ونى
نرى شمال د پيغلى د لمنى

* * *

٤ ـ د ناستى اتڼ :

كله چې ټولى ښځې د ولاړې اتڼ دناوې په كور كې وكړي او ستړې شي نوور وسته له هغه بياد ناستى اتڼ كوي . په دې ډول اتڼ كې ټولى ښځې ناستى وى ، يوه ښځه په ناستى باندې ډول ورته وهى ، اويواري يوه ښځه ولاړه وى او اتڼ ورته كوى . داتڼ سره سم نورې ښځې سندرې ورته وايى ، او همدغه يوه ښځه چې په ولاړى اتڼ كوى . ټكى هم وراچوي ، دا سندره په دې ډول ده :
لومړى سندره : لاهور ته ځمه لرې وطن دى ، بيانه راځمه وند يارى (۱) واچوه بخمل په زنګنونه .

* * *

۱ ـ خلك دې وايي تهمتونه
لاهور ته ځمه لرې وطن دې بيا نه راځمه

---

۱) وند يارې = ورينداري .

زه د تهمت څنځیر په غاړه ګرځومه

لاهورته ځمه لرې وطن دې بیانه راځمه

لاهورته ځمه لرې وطن دې بیانه راځمه

وند یارې واچوه بخمل په زنګونه

* * *

۲ ــ بندیخانې کړکۍ ته راشه

لاهورته ځمه لرې وطن دی بیانه راځمه

غوږ راته نیسه ما پاڼسي ته جګوینه

لاهورته ځمه لرې وطن دی بیانه راځمه

لاهورته ځمه لرې وطن دی بیانه راځمه

وند یارې واچوه بخمل په زنګونه

* * *

۳ ــ د جلیخانې خواته پیپله

لاهورته ځمه لرې وطن دی بیانه راځمه

خدای دې ببری که چې بندیان دې بویونه

لاهورته ځمه لرې وطن دی بیانه راځمه

لاهورته ځمه لرې وطن دی بیانه راځمه

وند یارې واچوه بخمل په زنګونه

* * *

دوهمه سندره — شازیبا چلمه

نیلی رازین که باجوړته می‌لیزینه

شازیبا چلمه

۱ ـ سترگی می تاته تورولی

شازیبا چلمه

چی ته رانه غلی په سالوبی پاکومه

شازیبا چلمه

شازیبا چلمه

نیلی رازین که باجوړته می‌لزینه

شازیبا چلمه

* * *

۲ ـ یه سره کل شی پوزې پرې شی

شازیبا چلمه

تندیه مات شی په تایی څه لیکلی دینه

شا زیبا چلمه

شازیبا چلمه

نیلی رازین که‌باجوړته می‌ازینه

* * *

۳ ـ نن می خوشخال زړگی خفه دی

شازیبا چلمه

د سوبو ته کوترې غبرګې ورکې دینه
شاز یبا چلمه
شاز یبا چلمه
نیلی رازین که باجوړ ته می لیژینه
شاز یبا چلمه

## ۵ ـ دناوې دجګیدواتنې :

کوم وخت چی ناوې دخپل پلار له کوره آمی، اوبس او یا موټر ته پورته کوي، نوښځی ددیرې خوشحالی څخه په جوش او خروش سندرې وایی، او یوه ښځه ډول یا دریا ورته وهی یوه یا تر هغی زیاتی ښځی ورته ګډیږی او یوسورد سمال یا دخپل تهیکری (زړوکی) یوه څنډه پورته پورته ګډوی او داسندره ورته وایی :

لومړی سندره: بغدادی کوتره خوب خوب نه کي ړنګیږی .

پلانیه(۱) خوب دمړخوبه (۲)شه-پهوړه خوردې غوریږدی روانیږي

دوهمه سندره:

۱ ـ یاښه وې خورې ښه وې ، چی ترشنوونومی راتیره کړې چی پلاردې په پیسوشو ته یی هیره کړې .

---

(۱) په دې ځای کی دناوی دوروړ نوم اخلی

(۲) مړخوبه: ناوی ته چی خوب ورغلی وی اودشرم له لاسه خوب نشی کولای هغی ته مړ خوبه وایی

(۳) دد ی سندری تکی ځکه رانه وړل شوې چی ټولی کنځلی اوله ادبی چوکاټ نه بیټخی وتلی د ی .

۲ ـ یا ښه وې خورې ښه وې چې ترشنو نومی راتیره کړې
چې مامادې په لوتو شوته یې هیره کړې

۳ ـ یا ښه وې خورې ښه وې چې ترشنو نومی راتیره کړې
چې موردې په خوزو شوه ته یې هیره کړې

٤ ـ یا ښه وې خورې ښه وې چې ترشنو نومی راتیره کړې
چې ورور دې په دنیا شوته یې هیره کړې

٦ ـ د میره کورته ناوی دراورو اتن: کله چې ناوې د میره کورته را ورسوي ، او د کور په دروازه کې یې له آس، اوښ او یا موټر څخه کوزه کړي نو تر څو چې یې خسر او خواښې ورته را وتلې نه وي ښځه نه را کښته کیږي. کله چې یې خسر او خواښې ورته راووتل بیا تو لې ښځې په داسې حال کې چې ډول یادر یا ورته وهل کیږي ګډیږي او داسندره د خسر او خواښې په احترام وایی :

لومړۍ سندره : په غره کې دانګورونه ولاړه ده

پلانیه (۱) ورته را ووځه په وره کې دې کسکې نزوو ولاړه ده.

کله چې ناوې د کور له دروازي څخه ورتیره شي، نو د کورد دروازې څخه بیا د ناوې د کښیناستو ترځای پورې داسندره وایي:

دوهمه سندره: وورہ چې پور ته ځې چمبې یې لوړې دي .

---

(۱) دلته مراد د ښځې له خسر او خواښې څخه دی ، مګر په تکیو کې چې د میره ورور ، تره او نورو یادوی نور سندره تر آخره پورې په هماغه ډول تکراریږي .

داناوې د پلانی (۱) ده په‌مخ کی د پلانی (۲) د توپلک لرې دي .

**۷-دناوی د کښیناستو اتن** : هغه وخت چی ناوې یی د میړه په کور کی کښینولـه نو ټولی ښځی گرد چاپیره ورسره کښینی. یوه ښځه دول یادریا ورته وهی او یوه ښځه ورته گډیږي، تکی وراچوي نورې ښځی بیا سندره نیسی. هغه سندره چی په غه وخت کی ویله کیږي داده:

۱- پرې واچوئ لاسونه
وئ مور (۳) بی شاترنگ (٤) کی
لور بی موزته پاتی شینـه
پرې واچوئ لاسونه

---

(۱) دلته مقصد دښځی دمیړه شخه دی .

(۲) پدې ځای کی دناوی دمیړه دملگرو نومونه راځی ټوله سندره په خپل شکل سره ویله کیږی.

(۳) پدی ځای کی دناوی دمورد نوم نه وروسته په نورو ټولیوکی دپلار، ورور، ماما اونورو نومونه راځی، نوره سندره په هماغه شکل تکراریږی

(٤) شاترنگ: سرگردانی او لالهاندی ته وایی .

# دوهم فصل

## منثور کړنی ادب

## متلونه

دپښتو دشفاهي ادب په څانگو کې یوه څانگه متلونه دي چې فکري اوفلسفي خوايي دملتونو دعقلي او مفکورويمدار جوپه تعيين کې اززښتمن اومهم دی. دغه متلونه دیوې فکري ذخیرې په توگه لهډیرې پخوانه په اولسونو کې موجود دي، اوله یوه نسل څخه یې بل نسل ته انتقال پیدا کړی، اودعوامودفلسفي مهم اجزاء هم دغه متلونه دي.

متلونه که څه هم لنډې اوساده جملې دي مگر حقیقت دادی چې په هرمتل کې لوی حکمت پروت وي اودغه مقولې چې د تجربو نه وروسته منځ ته راغلي، او په عام، ساده اولنډ دول یې په جامعه کې انتشار موندلی، دیوې سیمې، ټولنې اویوې زمانې دخلکو ذهني اوفکري سویه کردارونه، اجتماعي روابط، هوښیاري، دژوند سطحه، کلتور اونور په ښه ډول ترې څرگندیږي. دپښتو دشفاهي ادب دغې خوندــ

ورې برخې (متلونو) درامنځ ته کيدو وخت اونيټه او شخص معلوم نه دی ، بلکه په هره زمانه کې دنامعلومو کسانو له خوا ويل شوی دی وروسته له يوه سړی څخه بل ، او له بل نه بل او ريدلی ، دکورنه کلی دکلی نه قوم دقوم نه سيمې او دسيمې نه ملت ته رسيدلی او په ټولنه کې عام شوي دي .

دمتلونوويل په يوه زمانه ، يوه سيمه اوشخص پورې ارتباطنه شي پيدا کولای ، بلکه په هره زمانه کې دهرې سيمې د خلکو له خوا ويل شوي دي چې ځينې يې له منځه تللي اوځينې يې تر اوسه پورې د خلکو په سينو کې شته او داهم نه شو ويلای چې وروسته تردې به نور متلونه پيدانه شي . له دې وروسته به هم دخلکو دتجربو په ذريعه متلونه منځ ته راشي ، چې دخپل ارزښت ، اهميت اوسوچه توب نه وروسته به په جامعه کې قبول اومنل شي ، او دخلکو محاورې ته به لار پيدا کړي .

ځينې ډير داسې متلونه شته چې په يوه سيمه کې وي ، مگر په بله سيمه کې بيا هيڅ درک نه لري اوځينې بيا داسې متلونه هم شته چې په ټولو سيمو کې دخلکو ترمنځ ويل کيږي .

دتاريخ په اوږدو کې چې هرڅومره وقايع او پيښې منځ ته راغلي په هماغه اندازه متلونه هم دتجربو نه وروسته را پيداشوي دي ، خپل اهميت يې په جامعه کې تثبيت کړی او دخلکو ترمنځ يې دويلو سلسله پيل شوې ده ، متلونه دنظم او نثر په چوکاټ کې ويل کيږي ، خو زياته برخه يې په نثر کې ده . منظوم متلونه تراوسه په منظمه توگه نه دی ټول شوي ، خو

ښاغلی حبیب‌الله رفیع دخلکوسندرې په کتاب کې ددغه ډول متلونو (۴۲) نمونې خوندی کړیدی (۱) ددې‌له پاره چې محترم لوستونکي ددې ډول منظومو متلونوله نمونوسره آشنا‌شي غواړم‌چې ددې ډول متلونو دوې نمونې هم وړاندې کړ م :

آس یې په خره بار کړ — خریې پرې مردار کړ

آسان یې په سوو گټي — میړونه یې په خولو گټي

همدا رنګه شاعران هم کله کله په خپلو شعرونو کې متلونه په داسې ډول راوړي، چې په‌متل دخپل شعر مزیت زیاتوي او دشاعر د خپلې خبرې دلاثبوت او ښتینوالي قوي دلیل همدا متل وي .

دپښتنو شاعرانو په ډیرو دیوانونو کې موږ داسې شعرونه پیدا کولای شوچې پښتو متلونه پکې راغلي دي، دمثال لپاره دحمید بابا (۱۱۴۸ هـ ق ژوندي) په دې شعر کې دامتل «چې نه کار هلته څه کار» پدې ډول راوړل شوی دی :

هلته څه‌غرض چې نه‌غرض متل دی – ځکه نه کړې په ډیوه بلبل غرض (۲)

زموږ اصلي بحث په‌منثورو متلونو بانـدې دی او دمنظومو متلونو او دشاعرانو په شعرونو کې دراوړل شوو متلونو یادو نه‌مې په ضمني ډول وشوه‌اوس‌غواړم چې بیرته خپل اصلي مطلب ته راوګرځم او په منثورو متلونوڅه زیاتې خبرې وکړم. زه به‌دلته‌دمتلونو په باب‌دلوستر

---

۱ـ دخلکوسندرې دحبیب‌الله رفیع ۱۲ ـ ۱۳۲ مخونه د۱۳۴۹ ش کال دتاریخ ټولنې خپرونه

۲ـ وګوره د روموجان دښاغلی داکتر انورالحق ترتیب د۱۹۵۸ع کال دپیښور چاپ

نکو دمعلوماتو دزیاتون په خاطر لو مړی دځینو پوهانو نظریات راوړم.

متلو نه دپو هانو له نظره : دپښتو متلو نو په باب انګریزی ختیزپوه اس ، سی تهار برن داسی لیکلی دي:

«متلو نه هغه عام حقایق دی چی دخلکو په خبرواترو کی په ذوق او څوند سره ویل کیږی . »

یو بل پوه چی سپر یانو نو میږی هم د متلو نه په بـاب داسی نظر ور کړی دی: «متلو نه هغه لنډې وینا ګانی دي چی بلاغت او رښتینو الی ولری. دغه و یناوې ددیرې پخوا زمانی څخه په خلکو کی موجودې اوددوې خو ښی وی.»

یو بل محقق چار لس انندل وایـی : «متلو نه هغه وړې مګرچستی جملی دی، چې دانسانی ژوند تجربـی اومشاهدې پکی پهډیره، عجیبه اندازه، باآشناطریقه اوخوند ناك شکل وړاندې شوې وی . د طنز او مـزاح مـالګــه هم ورسره وي » (۳) شوروي نـامتو لیکـوال ماکسیم ګورکی دمتلو نو په باب لیکی : «دمتلو نو په ساده الفاظو کی ترتولولوی حکمت پروت دی، متلو نه اوسندرې تل لنډې وي خو فکر اواحساسات پکی دیوه کتاب په اندازه ځای شوی وی .» (٤) . په افغانی لیکو الو کی دمتلو نو په باب ډیرو ښاغلو لیکوالو خپلی نظریـی

۳- روهـی متلونه (پښتو) دمقدمـی ۲-۳ مخونه ۱۹۷۵ ع کال دپیښور دپښتو اکادمی خپرونه

۴- مواد اوڅیړنـی ماکسیم ګورکی مسکو ۱۹۳۹، ۲۱۴ مخ دکابل محلی ۱۳۴۵- کال ددریمی ګڼی د (۱۱) مخ په حواله .

څرگندې کړې دی، چې موږ د تېرو لو نظریې د بحث داوږدوالی د مخنیوي په خاطر نه شوراو رای د هغوی له جملې څخه یوازې د پوهاند عبدالحی «حبیبی» د نظر په راوړلو اکتفا کوو، پوهاند «حبیبی» د متلو نو په باب لیکلی: «پښتو متلونه ډېر لوی مقصد په لنډوو یناو وکې ښکاره کوي او دویساوړ گنل کیږي او په وینا کې د قالب او شاهد مثال لري» (٥)

اوس چې مو د پښتو متلو نو په باب څېنې خبرې لوستو نکو ته وړاندې کړې . بهتره بولم چې د هغو هڅو او کارونو یوه یادونه هم وکړم چې د پښتنی متلو نو د راتولو لو په برخه کې شوی دی .

دزمانې په تیریدوسره ډېر زیات متلونه راپیداشوي او ډېر بی له منځه تللی دي او هغه چې تر اوسه پورې د خلکو سره شته بیا هم دومره زیات دی چې راتولول او خوندي کول یې ډېر کار او د پنډو کتا ولیکل غواړی تر اوسه پورې چې کوم کتابونه بـدې بـرخه کې لیکل شوی د هغو متلو په نسبت چې په جامعه کې شته ډیر لږ دي .

زه غوارم چې لومړی د هغو مستشرقینو یادونه وکړم چې پښتو متلونه یې راټول کړی او په مجموعو کې یې چاپ کړیدي او بیا به د پښتو لیکوالوهڅې په دې برخه کې یادې شي .

دختیز پوهانو له جملې څخه اس ـ اس تهار برن چې د پښتو متلونو کومه مجموعه د (۱۹) پیړۍ په وروستی څلورمه کې راټوله کړې وه د هغې یوه برخه یې په خپل کتاب (بنویاز موز افغانی سرحد) نومی کتاب

٥ـ کابل مجله ۱۳۵۲ کال (٥) گڼه (٦٨) مخ .

کې خپره کړې ده دا کتاب په ۱۸۷۶ع کال کې چاپ شوې دی . (٦)

دوهم مستشرق مشهور فرانسوی پښتو پوه جیمز دارمستتر (۱۸۴۹ـ ۱۸۹۴ع) دی چې په خپل مشهور کتاب د پښتونخوا د شعرهار و بهار کې یې د پښتو متلو نو (٦٠) نمونې خوندې کړې دی (٧). دریم سړې چې موږ یې باید د پښتو متلونو د ټولوونکي په توګه یادونه د لته وکړو هغه کرنال سي - اې - بایل دی . ده په خپل کتاب پښتو نکلاونو کې د پښتو ډیر متلونه له انګریزي ترجمې سره خوندې کړي دي دغه کتاب دوهم ځل په (۱۹۳۸ع کال) په پېښور کې دفقیر چند مهر له خوا چاپ شوی دی . (٨)

همدارنګه میجر هانری، جارج راورټی (۱۸۲۵ـ۱۹۰٦ع) په خپل پښتو ګرامر کې د پښتو متلونو څه نمونې راوړې دي (٩) دپښتو رپه دستر کت ګز یتر زا و ځینو نورو ګز یتر و نو کې د پښتو متلونو نمونې او ترجمې راغلې دي، معاصر شوروی پښتو پوه صولت شاه میرګن اف هم دپښتو متلونو په باب یوه څیړنه لري ، چې په هغې کې یې دپښتو متلونو ژبنۍ اوعروضي خواوې څیړلې دي او دپښتو متلونو نمونې یې په روسي ژبه ترجمه کړيدي . (١٠) په مستشر-

(٦) روهي متلونه دپښتو برخې دمقدمې (٦) مخ

(٧) دپښتونخوا دشعر هارو بهار دجیمز دارمستتر ۲۱۹ - ۲۲۳ مخونه د۱۳۵٦ کال کابل چاپ پښتو ټولنه.

(٨) دزیری فوق العاده ګڼه ۲ نمبر ۵۹ مخ ۱۳۵٦ کال پښتو ټولنه

(٩) وګورۍ پښتو ګرامر دهانری جارج راورټي (۱۸٦۵ع کال دلندن چاپ.)

(١٠) وګورۍ په خارج کې پښتو څیړونکي ۹۳ - ۹۴ مخونه د۱۳۵۳ کال دپښتو ټولنې خپرونه.

قینو کی دتولونه وروستی محقق دنمارکی پښتویوه پادري جنزانولډسن دی، چی په خپل کتاب «سپوږمیه کرنګ وهمه راخیژه» کی یی دپښتومتلونوسل نمونی له ترجمی سره خپري کړیدي (۱۱) کیدای شی چی نوروغربی اوشوروی پښتوپوهانو دپښتومتلونوپه باب تحقیقات اوخپرنی کړی وی اودپښتومتلونونمونی په خپلوژبوترجمه کړي وی چی دتولوراوړل موږ له بحث نـه لرې کوي په همدې اساس ددې څومثالوپه راوړلوبسنه کوو.

په پښتولیکوالوکی مرحوم غلام محی الدین افغان (۱۳۰۰ش مړ) د پښتومتلونوسل نمونی په سراج الاخبار افغانیه (۱۹۱۱-۱۹۱۹ع) کی خوندي کړې دي. همدارنګه دپیښورديوسفزودعلاقی دکوتی اوسیدونکی مولوي سیداحمد (۱۲) د(۱۹) پیړی په حدودوکی د پښتومتلونویوه مجموعه دروضة الامثال (۱۳) په نامه تولوله کړه. دمحمدعمرپه نامه یوه سړي هم د(۱۳۱۱ش) په حدودوکی دلندیو اونوروادبی آثاروپه یوه مجموعه کی دپښتومتلونوڅه نمونی راوړې دي (۱٤) په وروستیو

---

۱۱- وګوری سپوږمیه کرنګ وهه راخیژه ۱۴-۴۸- مخونه دپیښور چاپ :

۱۲- فرهنګ زبان وادبیات پښتوج ۱ ص۲۲٦ (۱۳) دروضة لامثال یوه نسخه په بریتش موزیم کی تر ۲۸۳۲ نمبر لاندی خوندی ده . دغه نسخه چی د پادری هیوزله خوا موزیم ته وړل شوې په (۱۸۷۵ع) کال د غلام جیلانی پیښوری په خط کښل شوې او (٦۷۹) متلونه لری. دغه نسخه پروفیسر بلومهارت په خپل فهرست (۱۹۰۵ع) کال دلندن چاپ (کی معرفی کړې ) پښتوکتابونه ٦۳ مخ

پروفیسر میکنزی هم په خپل فهرست کی دغه نسخه معرفی کړې ده (وګوری ۱۳۰ منخ د ۱۹٦۵ کال کل داکسفورد چاپ) .

(۱٤) فرهنګ زبان وادبیات پښتوج اص ۴۵۰

کالونو کی چی دپښتوژبی دگړنی ادب دبیلابیلو برخودټولوله پاره کارشوی، پدې لړ کی متلونه هم راټول‌شوی ، اودهیوادمختلفومؤسسو چاپ کړیدې، زه اوس دلته دهغوکتابواومستقلو آثارو یادونه کوم چی‌متلونه پکی ټول‌شوی دی:

(پښتو متلونه) پدی کتاب کی (۲۳۱) متلونه ښاغلی امین الله زمریالی اوښاغلی‌محمد قدیر له خواخوندی شوی دی (۱۵).

متلونه: پدې کتاب کی(۱۹۱۰) متلونه‌لوی فولکلوریست مرحوم محمدگل نوری(۱۳۵۲ش مړ) راوړی‌دی(۱۶).

پښتومتلونه‌دپښتو متلو دادریم کتاب دي ،چی (۲۷۷۰) متلونه یی دالفبی په ترتیب‌پکی خوندی کړی دی (۱۷).

سپیڅلی گایونه او(ملی‌ادب) په نامه دوه کتابه دپروفیسر سیال کاکړ له خواخپاره شوی چی‌د پښتو متلونو نمونی لری (۱۸).

ادبیات مردم: ښاغلی‌محمدشفیق وجدان پدغه‌کتاب کی (۱۸۷) پښتو متلونه دمتلونو له‌چاپی مجموعوڅخه انتخاب کړی دی (۱۹).

---

۱۵ دغه مجموعه دپښتوټولنی له خوا خپره شویده.

۱۶- دغه مجموعه په ۱۳۳۷ هش کال دپښتو ټولنی له خواپه ۱۵۶ مخونوکی خپره شویده. ۱۷ دپښتو متلونو کتاب دښاغلی محمدین ژواك په اهتمام په ۱۳۴۴ش کال په ۱۷۳- مخونوکی خپور شوی دی. ۱۸- سپیڅلی گایونه په ۱۹۶۰ع کال په کوټه‌کی په وړه کچه ۹۶ مخه، چاپ شویدی اوملی ادب په ۱۹۷۲ع کال په ۴۸ مخوکی دنوموړی‌سیال کاکړ په وسیله دکوټی دپښتو اکاډمی له خوا خپور شویدی.

۱۹- وگوری، ادبیات‌مردم ۱۰- ۱۶ مخونه ۱۳۴۸ کال چاپ

«امثال اوحکم» پـدی کتاب کی دښاغلی عنایت الله شهرانی له خوازیات- متلونه خپاره شوی دی . (۲۰)

«فولکلوری گوډی» پدغه کتاب کی هم د متلونو بحث شته، او مؤلف د منگلودسیمی (۳۸) منثوراو (۱۳) منظوم متلونه راوړی دی . (۲۱)

«روهی متلونه» داد پښتو متلو یو بل پنډ کتاب دی، چی ښاغلی محمدنواز- خان طایر ترتیب او تدوین کړی او د دوهم ټوك په خپریدو سره به یی د متلونو شمیر دولسوزرو متلوته ورسیږي (۲۲)

نور متلونه هم دهیواد په خپرو نو کی په گډوډ شکل خپاره شویدي ماچی هم کوم متلونه دپکتیا دخوست په سیمه کی راټول کړي دټولو چاپی مجموعو سره می مقایسه کړي، او ټول داسی متلونه دی چی چیری نه دي چاپ شوي او که کوم متل په اختلافی شکل په ځینو مجموعو کی راغلی وي ، نومی په لمن لیک کی ورته اشاره کړي ده. اوس د کتاب پـدې بـرخه کی دمحترمو لوستونکـوله پـاره هغـه متلـونـه وړاندې کیږي :

---

۲۰ ـ امثال وحکم (پښتو) په ۱۳۵۴ کال کی دبیهقی دکتاب چاپولو موسسی له خوا دپښتو څیړنو دبین المللی سیمینارپه ویاړ په ۱۶۴ مخونو کی چاپ شویدی.

۲۱ـ فولکلوری گیډۍ دعلی محمدسوبمن ۱۷۰ـ ۱۷۹ مخونه ۱۳۵۵ کال د پښتو ټولنی چاپ

۲۲ـ دروهـی متلونه په لومړی ټوك کی د(د) تر ردیفه پوری متلونه راوړل شوی دغه مجموعه په دوه ټوله چاپ شوې یو دوی یی خاص پښتودی ، چی ۲۷۸ مخونه اوبل یی اردو ترجمه هم لری چی دمخونو شمیر یی تر ۶۱۴ پورې رسیږی دغه دواړه کتابونه دپیښور دپښتو اکادمی له خوا په ۱۹۷۵ع کال چاپ شویدی.

۱ ـ آسمانه پاس یې کوزمه شي دناپورې (۱) په لاس مه‌شي .

۲ ـ اوبه که څومره پټې بهیږي بیاهم په ورخ جوتیږي (۲)

۳ ـ بخته چېرې وې دوخته (۳)

٤ ـ بیدیاته پرده وړه کورته کړه ده وړه .

۵ ـ پردي په سریښونه ګلېږي ، خپل په امبیرو (٤) نه شکیږي .

۵ ـ پردي وطن ته جامه وړه خپل وطن ته کړده وړه .

۷ ـ په زاړه پسې خواري مه کړه مړبه شي، په کوچني پسې خواري مه کړه هیربه یې شي .

۸ ـ په کوچوکي مچ مه غواړه .

۹ ـ په خوږه خوله منګورهم له غاره ووزي .

۱۰ ـ تربور چې په اووقرآنو کې پیدا کړې بیاهم ارزان دی.

۱۱ ـ تربور که پړی وي ته یې منګور بوله.

۱۲ ـ تربور مړکه غندنه یې مه (۵)

۱۳ ـ چې‌اوبه بهیږي توبین ( تیمم ) نه دی روا (٦)

۱٤ ـ چې په ویاله تړوپ واچوې لښتې یې‌ترمنځ څه شي وي .

---

۱ـ ناپورې =قصدمن ، بدبین

۲ ددی متل بل شکل داسی دی: اوبه په‌کمزوری‌ورخ ماتیږی ( روهی متلونه ۱۹مخ)

۳ـ ددې متل بل شکل داسی دی: بخته و لی نه راتلی دوخته (روهی متلونه ۳٦مخ )

۳ـ امبر : امبور. (۵) ددې‌متل بل شکل داسی دی: تربورمړکه غیبت پرې مه واید (روهی متلونه ۹۲مخ )

٦ـ ددې متل بل دول داسی دی . چې اوبه وی تیبانه (تمیم) ته څه حاجت وی (روهی متلونه ۱۱۷ مخ )

۱۵ - چي په اوبو ګډيږي ځپلی به ور ته کاږي ،

۱٦ - چي ښـګه يی چوړ (۱) داسی يـی بچوړ (۲)

۱۷ - چي تـل ځی په غدی يوه ورځ به واوړي په بدی .

۱۸ - چي ځان دووس نه کړي دنيانه ډيريږي .

۱۹ - چي زاړه شي نوړانده شي

۲۰ - چي زاړه شي نوخوازه شي .

٦۱ - چي ژبهی وم دنجونو پسول وم چي زوړشوم اوس يی پيغور شوم

۲٦ - چي ژبهی وم دنجو يار وم چي زوړشوم نو يی پيغور شوم ،

۲۳ - چي سنځله ګل کړي شمال غرغر کړي .

۲۲ - چي غروي شمال لري .

۲۵ - چي غل نه بی قهرجن په ځه يی .

۲٦ چي غم په دړه ورننوزي صبرپه دريځه ورننوزي .

۲۷ - چي ګوړه يادوم خوله مي خوزيږي (۳)

۲۸ - چي نه پوهيږي نو پيسی دخاوروسره ګډې کړه .

۲۹ - چي نه خوري هغه نه خرواره خوري .

۳۰ - چي نه تری خلاصيږی هغه ميلمانه ته دوه واري ستري مه شی ور کړه .

---

(۱) مراد مور اوپلار دی

(۲) مراد اولا دونه دی

(۳) دامتل په ځينو سيموکی داسی دی . ګوړه ګوړه کوه خوله به دې خوږه وی

۳۱ ــ چې ورو کی یې ملك وي کلی یې الك وي .

۳۲ ــ ځو ك یې وز يږوي دچادغاړې زو رشي .

۳۳ ــ ځوك چې اوښان اخلی ، نو جګې دروازې به ور ته ږدي

۳٤ ــ خپل نغن دبل په شکوره کې دی .

۳۵ ــ خر پلار که کال په تیر که .

۳٦ ــ خرې او به چې راشی رنهې او به په سر واخلی .

۳۷ ــ خواروداان مه کړې ودان خوار مه کړې .

۳۸ ــ خوار پور وړی چاوژلی دې .

۳۹ ــ خوړلی خواره ډیر زور لري .

٤٠ ــ ځان خوندي لره بل غل مه بوله .

٤١ ــ دا کال به تیر شی ستاداسوی زنګونه به مې هیر نه شی

٤٢ ــ داګمان مې نه شی ، چې میزاګل نه مې زوی و شی .

٤٣ ــ دپښتانه وار نه پاتې کیږي .

٤٤ ــ دتره زوې دتربره (تربور) زوی .

٤٥ ــ دختلو ی دګټلو یې نه یی .

٤٦ ــ دخواښی یوهډدبنی دی .

٤٧ ــ دډك مجام څخه چې نه اوړي بیا هم اوړي .

٤٨ ــ دزړه چارې په جنت کې دي .

---

۲ــ ددې متل بل شکل داسې دې : خریار کړه مطلب پرې باره کړه (روهی متلونه ۸۲ مخ )

٤٨- دښې غوښې ښه ښوروا وی .

٤٩- دګوډی (مشك) خوله ولاړه ، ږدنوست غوښت .

٥٠ -دليوانو سره ميزې ماتوی دشپنو سره تندی وهی.

٥١ دموتې پاس لومه کوه

٥٢- دنيا دز ړه سرنه اخيستې شو يده .

٥٣- دنيادزوی ، ورورسروهی .

٥٤ - دومره دچاسره مه خانده چې په حلق کی ده ژبې ووينې.

٥٥ - دوه تنه به ښه وای چې دريم شيطان يې په منځ کی نه وای .

٥٦ - ډم په ورځ کی سل سرونه خيشتوی بوهم نه شي کلولی .

٥٧- ډم يې په کفنو پسی وليږه هغه په توتانوو نخوت .

٥٨ - ډيرويل دخدای ښه دی (١)

٥٩- زړه دې هم کيزي اوساړه دې هم کيزي . (٢)

٦٠- زور په زاري نه کميزی.

٦١- زوی چې ورو کی وی ګل دی بو يوه يی ، کله چی لوی شی

تربوردی مينجوه يې .

٦٢ - زه که وړه يم په تول پوره يم .

٦٣- سنی نه ژړل غو نـډ ی پا س په ژړل

٦٤-ستو نزه دمړه مړ ښت دی

---

١- ددې متل بل شكل داسی ليكل شويدی ډيرويل دقرآن ښه دی (امثال اوحكم ٩٢خ)

٢- دامتل په ځينو سيموكی داسی د ی: هم يـی زړه كيزی هم يـی ساړه كيزی .

٦٥ـ شغالان ز امن زیږوی د شد ل په جواروېي ستروی .

٦٦ـ ښکلی کوم ښکلی چی زړه منلی .

٦٧ ښوته بیړه کوه بدو ته سیله.

٦٨ـ ښه په ځان کی دي که په جهان کی .

٦٩ ـ ښه په خدای پوري معلوم کړې .

٧٠ـ ښی لاس کیڼ لاس ته احتیاج مه کړې (١)

٧١ ـ صبر یه په پردی کور ر میړ نیه .

٧٢ ـ ظالم په ظالمه لا رځی ،

٧٣ـ غل چی غلا کوی خدای قرآن ته یی کوی (٢)

٧٤ـ غم په نغری پوری ښه دی ، نه را پوری

٧٥ ـ عمر خو یوه ځته غله نه ده چی تیر شی

٧٦ ـ کال گوره لوړوهه .

٧٧ ـ کلال په خپلو لوښو کی خوار .

٧٨ ـ کورمی درجارشه تر ویشوبرړو (٣) پورته .

٧٩ ـ که بازار په یوه پیسه شی چی پیسه نه وي نوځه به یی کوې.

٨٠ ـ که پرون دې خوله رانه کړه نن پرون دی .

٨١ ـ که خپله دوډی دې ورکړه نو دبل به هم وخورې .

---

١ـ دامتل په ځینو پښتنی سیموکی داسی دی : خدای دې یولا س بل ته نه احتیا جوی

٢ـ ددې متل بل شکل داسی دی: غل چی غلا ته ځی قسم په شاگرزوی(امثال او حکم ـ ص ١١٢)

٣ـ تیرو دستك.

۸۲ ـ که یوه خبره په نهوغاښو ووزي هغه په نهوغرو واوړي .

۸۳ ـ لږ ور کړه ډیر و نیسه (۱)

۸٤ ـ لمدې ختې په دیوال پورې ښې خښیږي .

۸۵ ـ له هغه چانه ودارشه چې له پوزې یې ګرنګ ځاځي .

۸٦ ـ ماما! سردې مه خلاصیږه غمه .

۸۷ ـ مړخو بیولی یوشی دی .

۸۸ ـ مړی ژوندی نه دي سره مخي .

۸۹ ـ میښې ته یې چې ګل ونیوهغې تول په خوله کړ (۲)

۹۰ ـ میښه چې زوروې نوجیتکې (اولاد) یې ورته وهه .

۹۱ ـ میړنی آس په خندنې ځل کې ښه ښکاري .

۹۲ ـ ناوې راوړل یري (۳) وی منډل په خپل لری .

۹۳ ـ نرسړی میړه نه لری پورورې یې میړه دی .

۹٤ ـ یارې که په وریجوغوړیووي نه دې وي (٤)

۹۵ ـ یوشخوند دې وي خو ښه شخوند وي .

۹٦ ـ یوه یې ژرنده ختله بل یې پنده (۵)

---

۱ـ دغه متل په داسې شکل راغلی دی: لږ ورکړه ډیروګټه (پښتومتلونه ۱۳۸ مخ )

۲ـ دا متل په کاکړوکی داسې دی: خره ته یې ګل ونیو هغه وخوړ (ملی ادب ۲۹مخ )

۳ـ یری: په تبې باندې پاخه شویو غنمو ته وایي. هغه بیا میده کوی وروسته له هغه یې د اوبو اویا شړوبو سره ګډوی اوخوری یې.

۴ـ دا متل په ځینو مجموعوکې داسې لیکل شوی دی. یاری چې په شفتالو شوه نو ونه شوه (امثال اوحکم ۱۶۰ مخ . )

۵ـدا مثال اوحکم مولف دامتل داسې لیکلی دی: یویې ژرنده ختله بل یې لګی (۱۶۳ مخ )

# د متلونو قصې

دعامیانه فلسفې دغه غوره او په زړه پورې برخه (متلونه) چې په اولسي تخلیق کې دفکراو تخیل دیوې درنې سرمایې ارزښت لري هر متل یې په یوې موضوع پورې دارتباط له مخې منځ ته راغلی او ځانته بیله فلسفه لري .

دمتلونو دغه عامیانه فلسفې اودموضوع د منځ ته راتګ بیس په ډیرو کوچنیو قصو کې نغښتی وې چې په فولکلوري تحقیقاتو کې یې ورته دمتلونو دقصو نوم ایښی دی .

له دغو قصو څخه سړی، دهر متل دمنځ تـه راتګ په عامل او فلسفه پوهیږی . ددغو قصو راټول له دې پلوه مهم دي چې دځینو متلو په اصلي مفهوم پوهیدل تـه رهغې چې سړی ورتـه ښه دقیق نه شی ، څه آسان کار نه دی . دمتلونو قصې له هرچا خصوصاً دنوروژبو له ویونکو سره دهر متل دفلسفې په پوهیدنه کې مرسته کوي .

دمتلونو دقصو په بـاب زما دمعلوماتو له مخې یو کتاب «دمتلونو قصې» په نامه خپور شویدی ، چې (۱۱٤) پښتو متلونو قصې یـې پکې

خوندی کړیدی اودمخونوشمیر بهیی (٤٦٠) دی (١) ،اوس زه دمتلونوهغه شل قصی په لاندې ډول وړاندې کوم ،چې مې په خپله سیمه کې ټولی کړی دي:

١ - یوسړی‌وه‌چې‌ډیرزیات‌په‌گیډه مین و. کومه ورځ‌چامیلمستیا کړې وه ،ډیرخلك یې ورغوښتي وو.په هغو کې همدغه په‌گیډه مین سړی هم و. ټولوخلکوډوډۍ وخوړه ، دې په گیډه مین سړي ډ.و دومره ډیره وخوړه چې په‌آخر کې یې په نس دردشو. نه چیرې تلای شواونه یې‌بل‌څه‌کولای‌شول. یوازې په‌ناروشو، چې مړکیږم بل سړي ورته‌وویل‌چې«که‌خوارهپردي وو،گیډه‌خودې خپله وه» چاخوقرآن نه ودرته نیولی ،چې دومره ډیره ډوډۍ وخوره.

٢ - کومه ورځ دیوه سړي دکورترمخ منگورتیرشو. دکور ښځې چې ولید،نوپه ژړایی شروع وکړه یوه بل سړی چې داحال ولید، چې دکورخاوندژاړی، لوپوښتنه یې تری وکړه ،چې پلانیه ولې ژاړې هغه ورته وویل‌نن ورځ زماد کورترمخ منگورتیر شو، ده ورته وویل چې خیردی داخوپه ژړانه ارزی،هغه خوانسان نه دی چې په څه شي پوه شي .ده ورته وویل چې په دې زه هم پوهیږم. زه ددې له پاره نه ژاړم چې زماد کورترمخ تیرشوددې له پاره ژ ارم‌چې «سباته یی را باندې لارشوه» هره ورځ به بیاپه‌دې لاره ځي اوراځي .

---

١- وگوری، دمتلونوقصی‌دښاغلی‌ابوالخیرځلاندده ١٩٧٥ع کال‌دکوتی‌چاپ‌پښتواکادمی.

۳ - په يوه سيمه کې په يوه شپه درې ودونه وو په کلي کې دبدسکې په نوم يوسړی اوسيده ، اودغو درې واړو ودونو خاوندان دبدسکي ياخپلوان او يا ملګري وو. په هر صورت خو بدسکي يې دغو درې واړو ودونو ته خبر کړی و، کله چې ماښام رانږدې شو، نو دبدسکي کله يوه واده ته زړه وشي ، چې ورشي، کله بل ته .

کله په يوه لار روان شي کله په بله. بالاخره پدې چرت کې دی ، چې اوس کوم يوه ته ولاړ شم . که يوه ته ورشم بل پاتې کيږي او که بل ته ورشم بل پاتې کيږي، که ورنه شم نو حتماً خفه کيږي آخو اخر په چرتو کې ډوب شو اوزيات وربانديې ناوخته شوه اودرې واړو ودونو څخه پاتې شو او اوس ټول خلک دامتل کوي چې «بدسکي يو ښادې يې ډيری»

٤ ــ دوه تنه سړی سره په جنګ شول ، خو يوه تن ځان خلاص کړ او په منډه يې پيل وکړ. دوهم هم ورپسې منډه کړه مګر هيڅ نه شو ورپسې رسيدای ،دريم سړی چې وليدنو په دوهم سړی يې غږ وکړ، چې دمخه لوری شه او اوس داخبره په متل بدله شوی او هر څوک يې وايي، چې «يو ورپسې رسيدای نه شو بل ورته ويل چې دمخه لوری شه . »

٥ ــ يوسړی وچې ډيره زياته دنيا او دولت يې ګټلی وا وټول يې خپلو زامنو ، ورونو او لمسيانو ته ساتلی وو ، هيڅ مصرف يې نه کاوه خپل ژوندي يې ډير په سختی تيراو ، نو خلکو به چې ددغه سړي ژوند وليد، ويل به يې چې پلانی سړی پردی دنياشپون دی، کله چې

نو موږی‌سړی مړشو، ټوله دنیا اودولت یی دده‌وارثینو ته پاتی شواوهغوی خپل ژوندپه مزو، چړچوړی تیراوه . دوخت په تیریدو سره دی خبری دمتل بڼه اختیا کړه اواوس هرڅوك چی داسی سړی وویني، چی دنیا گټی مصرف کوی یی نه اوزیات بخیل وی نوو ایی چی: «پلانی سړی دیر دی دنیا شپون دی .»

٦- یو سپین‌زیری سړی وچی‌څوزامن یی لرل. دغه‌سپین زیری په دنیا کی غیرله یوه کورڅخه‌نو رهیڅ شی نه لرل‌چی‌دهغی له درکه یی روزی پیداکړی وای، اوخپل ژوند یی پری تیر کړی وای اوخپله‌دی هم‌له کوره‌نه‌شووتلای‌ځکه، چی‌ډیرسپین زیری ونو یی زامن مجبورشول په غلایی پیل‌وکړپه‌آخر کی یی پرته له غلانور کارونه هیڅ دلاسه‌نه‌کیدل، ددوی‌غلاا کثره دمیزو، وزواوغوایانووه. کوم وخت به یی چی دامالونه راوستل‌کوموته به یی چی کور کی ضرورت‌و، حلال به یی کړل نور به یی خرڅ کړل هغه چی به‌یی حلال کړی ووده‌غوی وازدی (وازگی) به یی خپل پلار ته‌ور کولی پلار به یی په ډیره اشتهاسره خوړی، پلار به یی‌وازدی (سپینی بللی) کله به یی چی وازدی وخوړی‌نوویل به یی «چی خدایه‌ته‌می‌وینی راکوی داسپینی‌سپینی» چی اوس دغی خبری دمتل بڼه غوره کړی اوپه ټولوخلکو کی مروجه ده .

* * *

٧- په یوه کلی کی یوه ښځه وه چی دکلی دنورو‌ښځو په نسبت

ډیره کوچنۍ ا وقد یې ټیټ و، خو داښځه په خوله کې ډیره تیزه او چالاکه هم وه، اوپه حقیقت کې یې ډیرې زیاتې میړانې او همت هم درلود، په پښتنو کې یوه اصطلاح ده چې وایي « پلانۍ په پوزه نرمچ نه پریږدي» نودغې ښځې هم په پوزه باندې نرمچ نه پریښووده، او هرچاته به یې ښه اوبدورگرزول. کومه ورځ دغې ښځې دکلي دیوې بلې ښځې سره جنجال پیدا شو، اوخبره پیغورته ورسیده نوموړې ښځې دخپلو نوروخبروتر څنگه داخبره ورته وکړه: «زه که ورویم په تول پوره یم» اوس داخبره دمتل په بڼه ا وښتې او ټول خلك یې وایي.

* * *

۸ـ کومه ورځ یوې ښځې ته دپیسوضرورت پیدا شو، وروسته له هغه دکلي یوې بلې ښځې ته ورغله اودهغې نه یې پیسې په قرض وغوښتې. هغې ښځې ورته وویل: چې پیسې نه لرم نوموړې ښځه ترې وړه اوخپل ضرورت یې رفع نه شو. بله ورځ بیادغه ښځه دهغې ښځې کورته ورغله خبرې یې سره کولې په خبروکې قرض ورکوونکې ښځې قرض غوښتونکې ښځې ته وویل: چې په هغه ورځ چې ته زموږ کورته راغلې وې اوپیسې دې وغوښتې په هماغه ورځ له ماسره پیسې نه وې، اوس که دې په کاروي ډربه یې کړم دغې ښځې داسې فکروکړچې ددې ښځې حتماً مشکل حل شوی دی، اوپه دې باندې پوهیده چې له مانه پیسې نه غواړي اوپه دې نه وه خبره چې تراوسه پورې یې لاپیسوته احتیاج شته. نوموړې ښځې چې داخبره

واوریده وخت یې مناسب وګاڼه سمدلاسه یې دامتل ورته وو ایه.
«که پرون دې خوله رانه کړه نن پرون دی» یعنی که په تیره ورځ
دې پیسې رانه کړې نن یې چې راکړې هم صحیح خبره ده.

* * *

۹- په ژمي کې د کوچیانو کلې بنسکته رواني وی. دیوی بوډۍ
لمسی (دلورزوی) پر آس سپورو، نیایې په پښورو انه
ډیره زیاته ستړې او ستومانه شوې وه، لمسی یې چې ولیده نوورته
وویل: ادی خندګه یې او خندګه وروو رورو انه یې هغې ورته وویل:
چې، زویه! ډیره ستړې شوې یم. لمسی یې بیاورته وویل چې: ښه
لږه دمه وکړه بیا نوراځه. لمسی یې بیا په آس سپور شواولاړ کله
چې دبوډۍ دوهم لمسی «دزوی زوی» راورسید، او هغه هم پر آس
سپورو دخپلې نیا نه یې پوښتنه وکړه، چې خندګه یې هغې ورته وویل:
چې ډیره ستړې شوې یم، دستي یې لمسی له آس نه ورته کوز شو
او خپله نیایې آس ته وروخیژوله، هلته نو بوډۍ دامتل وو ایه «عبث
خواری دلور په لمسی»

* * *

۱۰- یوه زورور سړی دیوه بل غریب سړي په حق تیري او ظلم کاوه
او همیشه به یې ازار او تکلیف ور کاوه، او خپل کبر او غرور دومره
لیوني کړی و، چې هیڅ شی به یې نه ایدل خو هماغه غریب سړی به
بیا هم خندګ ور کاوه او جنګ به یې نه ورسره کاوه. دغه ظالم او کبر جن

سړی په ټولو خلکو دا گمان کاوه، چې ټول له ما څخه دار یږی، یو ورځ یې د کوم بل سړی سره په کوم شی خبری پیداشوی، دغه سړی چې هرڅو مره په انسانیت ورسره غږیده، مگر بیاهم کبرجن د خپل کبر څخه وانــه وښت، په آخرکی دی بل سړی ورته و ویل، چې گوره دغه ډول کارونه اخر پښیمانی لری ، که سم لاړ نه‌شی نوزه به دی برابر کړم کبرجن ورته دویل چې «ورځه که‌توره دی‌لنده‌وی یــو بل پل‌هم وړپسی کښیږده».

اودا خبره اوس په متل اوښتی اود ټولو پښتنو تر منځ ویله کیږي .

* * *

۱۱ــ یوساده سړی واوهمیشه به یې د خپل ځان په تاوان کارونه کول، په هیڅ کی کار کی یې گټه نشوای کولای. دده نژدې دوستانو به چې هرڅو مره نصیحتونه ورته وکړل بیا به یې هم کوم تأثیر له وربانديې کاوه په‌آخر کی دوستان هم ستړي شول. کوم سړی به چې دده دبدو اوغلطو کارو له لاسه دهغه نږدې دوستانو ته‌ورغلل اوشکایت به یې ورته وکړ نو دوستانو به یې و یل، چې موږ نوره څوله ور باندې تنبا کی کړه، او نصیحت مو نه اوری او نه یــی منی، مگردده بیا هم «هغه ډول اوهغه لرگی دی. »

۱۲ــ ځینی خلك داسی عادت لری، چې ته دښو خبره ورته کوې هغه بده خبره کوي، چې ته نصیحت کوې هغه بل مقصد ځنی جوړ وي مطلب داچې عقلی قوه یې دیره کمزورې وي اود هرچا سره جنجال

کوی او داسی سړي ته د ... نسبت کوی، سپی چی سړی و وینی نو ورته غاپی او حمله پرې کوي. دغه ډول سړی چی څوك وويني نو دامتل کوي «(پلانی) .... په خوله پورې سپی تړلی دي».

۱۳ــ ځینی صادق او پاك خلك پیدا کیږي چی یوه یی وی په رښتیا یی وی. په ډیر وچــالاکیو او شیطانیو نه پوهیږي که چیرې څـوك لږ شه ورسره و کړی، نو هغه بیادژ وندتر آخره پورې مرستی او کومکونه ورسره کوی او که چیرې څوك لږ بدورسره وکـړی، نو هر وخت یی چی لاس برابر یږی، دخپلو لږو بدو انتقام د تل له پاره ترې اخلی، او بیا په هیڅ ډول نه ورسره جوړیږی چی دداسی سړي په مقابل کی دامتل وایی، چی «دپلانی ... ښه په ښو نه ګډیږي او بدیی په بدو.»

۱۴ــ ځینی کسان چی خلکو ته ډوډی ور کوی، هر څو مره که یی پخه کړې وي بیا یی هم په ډوډی کی خوندنه وی. هر څوك چی ور کره ډوډی خوري نو دامتل وایی: چی. «دپلانی.. دکورمالګه نه ده په ځای» ددې سره په څنګ کی که دچا په کور کی کومه ښځه ښه ډوډی پخوی نود هغی ښځی په باره کی وایی: چی «پلانی زموږ دکورمالګه ده» .

۱۵ــ وایی چی یو وخت موږ کان دپشی (پیشو) څخه ډیر په عذاب شول. نو ټولو موږ کانو مصلحت سره وکړ چی راځئ پشه په ټولو باندې ووهو، او مړه یی کړو، بله ورځ چی راټول شول نویوه موږك ورته وویل چی میاوته به یی څوك ودریږی. داخبره اوس په متل تبدیلـه شویده، هغه کمزوري کسان چی دزورورسره څه لانجه پیل کوی، نو

ځینې خلك دغه خبره دمتل په دول ورته کوي چې «میوته بهیی ځوك ودر بزی.»

۱۶ـ ځینې کسان چې دسپینتی (بلدی) لوبه کوي، نوبیوه بنهتی دلاس ددوو گوتو په منځ کی دبخت برکت نکره اوبنی سپنبتی په نوم زدي او دتولو ښځو گډتل په هماغه سپینتی پوري مربوطه گنی چې د غی سپنبتی ته د گورت سپنبتی وایی. په ځیو کورنیو، کلیو او قوم کی چې ښه برکتمند بختور، نکره صري وي، هغه مرشي یا چیري لار شی، مقصد داچې دخپلی کورنی، کلی او قوم ځخه لري شی او یا یو ځوك ددي دول صفاتو لرونکی دوست، ملکري او آشناله لاسه ورکری نو دامتل وایی چې: «دا یاهغه خودگورت سپنبتی وه.»

۱۷ـ یوه نجلیوه کله یی چې میره وکر، پس له ځه مودې یې سی میره مرشو، ښځه په پیغلتوب کی کونده شوه میره یی ورور درلود نو دغه ښځه دخپل لیوره په تمه کښیناسته چې مابه وکري. دیر وخت تیر شو لیوره یی ونه کره په آخرکی دغه ښځه هم زړه شوه او میره یی ونه کر. ددي واقعی نه وروسته خلکو به دامتل وایه او اوس یی هم وایی چې: «کونده د لیوره په تمه کښیناسته دبله میره هم وته یا، کونده دلیوره په تمه له بل میره پاتی شوه».

۱۸ـ په ځینو لویو کورنیو کلیو او قومونو کی هر ځوك یو مشر لري چې هغه مشر د خپلی کورنی، کلی او قوم ټول بهرنی کارونه کوي که گټه یی ورته راوره که تاوان، دوی یی په ډیره خوشحالی سره

دخپل مشرد پاره داخبره د متل په شکل کوي چې « ستاغږ دی زموږ نګ»
یعنې هرڅه چې ته وایې منو یې که ګټه دې وکړه او که تاوان قبلو یې.

۱۹ ـ دشلو او دیرشو کلو خبره ده، چې په کلي کې یوه یوه ښځه وه او دا ښځه دخپلو لیوورونو، تربورانو او ځینې نورو خلکو څخه دیره زیاته په تکلیف وه او همیشه به یې آزارو له ددې ښځې میړه هم مړو او خپله د ښځې نوم بدګي وه، او دیر سخت تریخ ژوندیې تیر اوه. پسه آخر کې دزیات تکلیف او مشکلاتو له لاسه د بوچا سره راغله او دومره نیکمرغه ژوند یې پیدا کړ چې اکثرو خلکو ددې مرستو ته احتیاج درلود، نو همیشه به داخبره کیده چې «بدګي یې وررو له په ګبینه یې وارو له» داخبره اوس د هغې سیمې په تولو خلکو کې نشر شوې او په لازم وخت کې یې د متل په شکل وایې.

* * *

۲۰ ـ ددوو تنو سره ملګرتیاوه چې یو یې دیرغریب او بل یې دیر شتمن و، غریب به همیشه دشتمن ملګري کورته ورته چای او دودی به یې تل وربه اندي خوره. شتمن ملګري به نورې مرستې هم ورسره کولی. لنده داچې شتمن سړی چې څومره مرستې د غریب سړي سره کړې وې او هرڅومره چای او دودۍ یې چې ور کړې وه، او ټول به یې ورکول نو تول به یې ورپسې لیکل. غریب سړي چې دا حال ولیده چې هرڅه یې په ما پسې لیکلي نو دیر تریې خفه شو او شتمن ته یې وویل: چې زه نور ستاکورته نه راځم او نه ستاکوم شی اخلم، تـه چې پـه

ملگر تیا کی په ماپسی هرشی‌لیکی ، نو زه به په کوموسترگو درته‌راشم شتمن ورته وویل: چی زه دغه شیان ددې له پاره نه لیکم چی سبا یی له تا نه وغوارم، اویا یی درته پیغور کړم، زما مقصددادی که سبا زه خوارشم او با کوم مشکل سره مخامخ‌شم نو ته به ماپر یږدې اوداسی امکان هم لري ، چی په‌دیرلږشی ماخفه کړی او خپله ملگر تیا به‌راسره وشلوی او ددې له پاره یی لیکم چی دا معلومات راته وي«چی‌ماته ستا دوستی په څومره تمامیږي» یعنی سبا به‌ما په‌دیرلږ شی بدل کړې.

دې خبرې اوس د متل بڼه غوره کړې او ځینی کسان‌چی په‌دې دول ملگر تیا اودوستی سره لري‌نود سبا ورځی د معلوماتوله پاره دغه شیان لیکی چی ده ته د هغه سره دوستی په څومره تمامیږي .

# نکلونه

افسانه او نکل د پښتو دشفاهي ادب یوه خولدوره برخه ده . دغه مهمه اودلچسپه ملي پانګه له ډېرې پخوا زماني څخه دخلکو په سینو کې پرته اودپیر بو په اوږدو کې یی له یوه نسل نه بل ته انتقال موندلی او په شفاهي ډول خپره شوې ده . په نکلونو کې دمحلي قهرمانانو کارنامې او کله کله ډېر جذاب عشقي مسائل او کله هم ډېر خرافي او وهمي خبرې بیان شوي وي. له دې نکلونو څخه دجامعې ټول ذهني شرایط، روحي کره وړه، او اجتماعي روابط ډېر ښه معلومیږي، اود ملتونو داجتماعي تاریخ په لیکنه کې دډېرو مهمو موادو په توګه استفاده ترې کیدای شي . معاصر تاریخ پوهان په دې عقیده دي چې د دغو نکلونو له موادو څخه دټولنو داجتماعي روابطو دتاریخي سیر په څرګندونه کې ډېره ګټه اخیستل کیږي . دنکلونو تاریخ ډېر لرغوني دی اود نن ورځې محصول نه دی بلکه په ډېر کالونو ور باندې تیر شوي چې ترنن ورځې پورې رارسیدلي دي .

نکلونه عموماً دوه ډوله دي یو هغه نکلونه دي چې خاص دماشومانو له پاره ویل کیږي، اود دوی په حافظو کې ضبط کیږي، دوهم یې

هغه نکلونه دي چې دلو یانو له پاره په حجرو او دېرو اونو روښانه کی ویل کېږي. په نکلونو کې دځینو خبرو راوړل، او دځینو خاصو مهارتونو کارول دنکلو په جذابیت، مؤثریت او په حافظو ساتلو کې ډېر زیات اهمیت لري او هغه داچې نکلچي په خپل نکل کې ډېره زیاته مبالغه اودروغ راوړي. دروغ او مبالغه هم په داسې ډول یعنې هغه کارونه چې دېوه انسان له قدرته پوره نه وي او پېریانو حیواناتو او نورو واهلې شیانو په واسطه انسان دومره قدرت په لاس راوړي چې هرڅه کولای شي او یا یو انسان له داسې چالونو، کارونو او هنرونو څخه کار واخلي چې دانسان له قدرته پې تصور نه شي کېدای، بلاخره یاپه خپل هدف کې کامران کېږي او یا ګکرې خوري .

نکلونه دپښتنو په هره سیمه کې شته، او ویل کېږي. یو نکل چې په یوه سیمه کې وي په بله سیمه کې هم په خپله اصلي بڼه اویا په لږتو پېر سره وجود لري، او له دې کبله داویلای شو چې هر نکل چې په کومه سیمه کې پیدا شوی وي او ویل کېږي دټولو پښتنو شریک مال ګڼل کېږي نه دیوې سیمې. پښتونکلونه زیاتره دنکل په منځ کې ځینې نظمونه هم لري چې خلک یې ناري بولي. دغه ناري په داستان کې دمشخصو کرکترونو له خوا ویلې کېږي، دغــه ناري د نکل په جذابیت او مؤثریت کې زیاته اغیزه لري. دپښتو نکلونو په شهرت او جذابیت اکثرو واقعه نګارانو څه لیکلي دي. ددوی له ډلې څخه الفنستون او راورتــې دآدم خان او درخانۍ د داستان په بــرخــه کــې خبــرې

لري(۱) په معاصرو مستشرقینو کې استاد اسلانوف (۱۹۷۷ ع کال مړ) د پښتو ټکلو په ارزښت خبرې کړيدي. زموږ دغه ملي پانګه په ټولو پښتني سیمو کې پیدا کیږي، او ټول ټولو ته یې زموږ د خلکو د اجتماعي روابطو او ټولنیز و څرګندونو په خاطر ډیر ضرورت لیدل کیږي زموږ د فولکوریستانو له جملې څخه چې پدې برخه کې یې کار کړی لومړی سړی مرحوم محمدګل نوري (۱۳۵۲ ش مړ) دی، چې پښتو ټکلونه یې د خلکو له خولو راټول او په خپل اصلي شکل یې د ځینو نارو سره یوځای دملي هیندارې په دری واړو ټوکونو کې خوندي کړي دي (۲) ښاغلي سید عابد شاه عابد هم داولسي ټکلونو په نامه هم یوه وړه مجموعه په کوټه کې خپره کړې ده (۳) او پروفیسر سیال کاکړ «پښتو ټکلونه» په نامه یوه مجموعه تیاره کړې

(1) Acant of kingdome of kabal ' p. 244, London ' 1839

۲ـ د ملي هینداري په لومړي ټوک کې: دفتح خان کندهاری، ښادی او ببیو، مومن خان او شرینو، جلات خان اوشمیلې، مرد نا مرد، زبرډاني ښاپیرې، موسی جان اوګل مکی ټکلونه راغلي دي. دغه ټکلونه لومړی په کابل مجله کې بیا په ۱۳۱٦ ش کال کې دیوې مجموعې په توګه (۱۷۰ مخه) پښتو ټولنې خپاره کړي دي. په دوهم ټوک کې یې د طالب جان ظریف خان، خشکیدار، قطب خان، آدم خان، قلندرجان او میرا جان ټکلونه راغلي. دغه مجموعه هم په ۱۳۲۵ ش کال کې (۸۲ مخه) پښتو ټولنې چاپ کړيده. په دریم ټوک کې یې چې په ۱۳۵۲ ش کال د کندهار د اطلاعاتو او کلتور آمریت له خوا د طلوع افغان په مطبعه کې (۲۰۲) مخه چاپ شوی، ځینې نور ټکلونه راوړل شوي دي. د لومړي او د دوهم ټوک ټکلونه په یوه ټوک کې څوځله د پېښور د کتابو د تاجرانو له خوا خپاره شویدي.

۳ـ په اولسي ټکلونو کې د ژرند باز پاچا، چندن لالا، د خراسان پاچا، ژړه غوا، نیکي او بدي، ملا تېتر، دری حافظان، تور دیب (او نور ټکلونه راغلي دي مخونه یې (۱۵۵) او په ۱۹۷۲ ع کال په کوټه کې چاپ شویدی.

چې تراوسه چاپ شوي نده (٤) ښايي دهيواد په خپرو نو کې هم ځيني نکلونه په متفرق شکل چاپ شوي وي. پهدغه ډول خاطر غزنوي هم د « سرحد کې رومان » تر سرليک لاندې دپښتو ځيني کيسې راټولې کړي دي (٥) همدارنګه صاحبزاده حميدالله په خپل اثر « پښتو کې رومان» کې دملي هيندارې دځينو نکلونو لنډيز په اردوژبه وړاندې کړی دی . دغه اثر په ۸۰ مخونو کې چاپ شوی دی ماهم په خپله سيمه کې ځيني دغه ډول نکلونه راټول کړي چې لاندې يې وړاندې کوم:

## نازو او جندو

يو خان و چې ډير زياتې پيسې يې درلې او ښه موړ ؤ . هيڅ شي ته يې احتياج نه درلود. ده يوه لوروه چې نازو نوميده او ښايسته يې په ټول اولس کې ساري نه درلود. ددې د ګوتې نوك به خلکو په سل روپۍ ليدلو

---

٤ـ « پښتو نکلونو په مجموعه کې پروفيسر سيال کاکړ ترلسو زيات نکلونه له يوې جامعې مقدمې سره راوړي‌دي. دغه نکلونه تراوسه ندي چاپ اود مسودې په حال کې دي .

٥ـ سرحد کې رومان په اردو ژبه ليکل شوي اودغه لاندې نکلونه : (ميموني، توردلې شهي، آدم خان درخانۍ، فتح‌خان رابيا، جلات محبوبه، موسی‌خان ګلمکۍ، ښادی ببيو ظريف خان، نيمبولا اوتيمبولا، بهرام او ګل‌اندام، قطب خان نازو ، يکه يوسف‌خان، شير بانو مومن خان شيرينو، ولي جان تانو، سيف‌الملوك بديع الجمال، مريم، عظيم‌خان، نعمان‌ـ صاحبزادګۍ، اسلام بی‌بی په کې راغلي ، دغه کتاب (۱۷۲) مخه په ۱۹٦٥ ع کال په پيښور کې چاپ شويدی.

دغه رنګه صاحبزاده حميدالله په يو ه وړه مجموعه کې چې « پښتوکې رومان » نوميږی اردو ژبوته‌د دغو لاندې پښتني نکلونو يوه لنډيز وړاندې کړی دی: ښادی اوبيبو موسی‌خان اوګلمکۍ، مومن خان اوشيرينو، جلات خان اوشمايله، طالب جان اوګلبشره ظريف خان اومه بی‌ی، خشکيار اوشاترينه، قطب‌خان اونازو، دلي او شهو، آدم‌خان او درخانۍ (دغه مجموعه ۸۰ مخه په ۱۹۷۰ ع کال په بلوچستان کې خپره شويده)

اومخ به یی چاپه دیرو روپیو نه شو لیدای. ددوی یو شپون وچی جندو نومیده او هغه هم دیره دنګه او ښکلی ځوانی لراه او هم یی دومره ښه شپیلی وهله چی په هغه سیمه کی دده په شان چا نشو وهلای. یوه ورځ په کور کی څوك نه وچی جندو ته دوډی ورورې نازو خپلی مور ته ورغله او ورته یی وویل : چی نن به زه جندو ته دوډی وروړم، مور یی ورته وویل چی ته څنګه یوه شپون ته دوډی ورورې ، ستا یو نوك په سل روپۍ خلك ګوری ته بیا شپون ته دوډی وروړې. نازو د مور نه پټه دوډی واخیسته او جندو ته یی ورووړه. موریی چی خبره شوه نو ډیره خفه شوه کله یی چی پلار راغی د نازو پوښتنه یی وکړه د نازو مور مجبوره شوه چی حال ورته ووایی . کله چی یی حال ورته ووایه او پلار یی خبر شو نو د خپلو نوکرانو سره یو ځای په نازو پسی ووتل که ګوری چی نازو او جندو یو ځای سره ناست دی نو پلاریی ډیر خفه شو نازو او جندو چی یو د بله سره مین شوی وو نو کله چی نازو خپل پلار د نورو نوکرانو سره ولید او جندو ته یی هم وویل چی پلار می را نــږدی شو دواړه ډیر زیات وار خطا شول په دغه وخت کی جندو دغم شپیلۍ شروع کړه او نازو هم د شپیلۍ سره دغم سندره داسی وویله :

جندو ښه وهه شپیلۍ

نــازو او اوس راغلی دتیر یو سری ډیلی

نازو خوواره داسندره ورته تــکرار کړه اخر جندو په نازو باندی

غزو کړچي هله پلارډی نور رارسیږي راځه چي تری و تښتو نازوهم ورسره ومنله دواړه وتښتېدل یوه کلي ته یې پناه یوړه پلار او نـور نوکران یې هم ور پسې ورغلل .

دکلي خلك نازو اوجندوته ورغلل اوورته یې ویل چي پلار دې وایي چي راوبې باسه ! څنـګه وکړو ؟جندو ورته وویل چي دغرمې ډوډۍ دې وخوړو بیابه ورشو .دوی هم دغسې ورته وویل : دنازو پلار وروته وویل : چي ډیره ښه‌ده کله چي نازواو جندو دغرمي ډوډۍ وخوړه ، بیادنـازوپلار ورتـه ویـل چي اوس یې نوراوباسه دکلي خلك بیانازو او جندوته‌ورغلل اوورته یې‌وویل،چي‌غواړې مو!دوی ورته وویل چي‌دماسپښین چای‌دې‌وچښو،بیا بـه و ر شـو کله چي دماسپښین چای یې وچښه،نودوی دواړه یې ورته‌را و ـتل او دهرې‌خوا نه‌وربا ندې‌دتورو ګذارونه وشول ،په آخرکي‌یې‌یوې کندې ته کش کړل،په‌دوی کي‌ازه سا چلیده چـي‌په‌دې کي‌یوه ګیدړه وربانـدې روزدې شوه،لزلز به‌یـې څټل بالاخره ښه‌شول آ خر کـلي ته‌رغلل، بیایې همغه سندره‌وکړه موریـې وویل :لکه چي‌نـا ز و ي مګرنوروخلکو به‌ویل‌چي نه دوی به‌اوس مړه‌وي، څـو واره چـي یـې سندره وکړه مور یې‌پوه‌شوه چي نازواوجندودي ، کورته یې راوستل‌سره واده یـې کړل‌او یوه‌نوي‌ژوند ته سره ګډشول .

# سره اوزه

یو ه سړی یوزوی درلود ، او یوه‌یې لوروه . دغې جلۍ له خپل وروروسره ډیر زیات مهر او شفقت درلود ، جلۍ دهلك څخه لږ څه لو یه‌وه . دوی یوه سره اوزه هم لرله وهره‌ورځ به‌دغه هلك د خرولود پاره صحرا ته بیوله . یوه ورځ ناڅاپي لیوه را پیدا شو اوهلك ته‌یې وو یل چې تاوخورم که سره اوزه ده ؟ ورته‌وویل : چې‌زه دې په کورکې‌پوښتنه وکړم‌چې‌ماوخوري او که زما اوزه! کله‌چې کورته‌راغی‌نوخپلې میرې (ناسکه‌مور) ته‌یې وویل ،چې دغسې یوه لیوه رابانديې پیښ‌شوی‌دی اورا ته وایې چې تاوخورم که‌ستا اوزه‌اوس نوته‌ووایه چې ماوخوري‌او که‌اوزه میرې‌یې‌ورته‌وویل :چې تادې‌وخوري موږ تاڅه‌کوو‌اوزه‌خوشیدې راته‌کوي، میره‌یې‌پردی‌مورووه هیڅ‌زړه‌یې نه‌وربانديې‌سوزیده. وروسته‌له‌هغه دغه هلك لاړاوخپل پلارته یې د لیوه خبره وکړه

پلار یې‌چې دخپلې ښځې خبرې‌اوریدلې‌وې‌نودهغې له‌دا ره یې خپل‌زوی ته‌وویل چې‌تادې‌وخورې‌پس له‌هغه‌هلك ډیر په‌خفه زړه خپلې مشرې‌خورته ورغی،هغې ته‌یې هم‌دلیوه‌داستان ووایه اوهم یې

دا خبره ور ته وکړه چې پلار اومیرې دواړو راته وویل چې تا دې وخورې، اوس وارسنادی چې ته څه راته وایې چې ماوخورې او که اوزه خو رخوریې ورته وویل: چې تاولی وخورې اوزه خو به بله هم پیدا کړم بل وروربه له کومه کړو؟لاړشه اوزه دې وخورې! دی هم خوشحال شوچې خوریې منفی ځواب ور نه کړ، مګر کله به چې دمیرې اوخپل پلار خبرې وروپه یاد شوې ډیر به غمګین شو، د خپلې خور خبره یې ومنله اولاړ لیوه ته یې وویل چې اوزه دې څه کړه ده ورته وویل چې اوزه خو لیوه وخوړه مور یې ورته وویل چې ولې مانه ؤ درته ویلی، چې تادې وخورې! ده ورته وویل چې خیر دې اوره به بله هم پیدا کړو زه خو بیانه پیدا کیږم میرې ورته وویل چې اوس به داوزې په عوض تا حلال کړو خپل میره ته یې غږ وکړ چې هله چاړه راوړه چې دابد مرغه حلال کړو پلار یې هم له مجبوریته چاړه راوړه او هلک یې حلال، مازیګر ته یې دهلك غوښه خلکو ته ویش کړه خوریې هیڅ ور باندې نه وه خبره چې زماورور یې حلال کړی دئ کله چې دخپل ورور غوښه وروړه نودې فکر وکړ چې دا به دې اوزې غوښه وی خوریې کالی مینځل اودخپل ورورغو ښه یې دکوزې په سرباندې کیښو دله، اوغوښه کوزې ته وروغورزیده دېجلې بیاهیڅ فکر نه شوچې غوښه کوزې ته ورغورزیدلی ده، له یاده یې وته کوزه یې د بام په سر کیښوده کله چې دکوزې اوبه و چې شوې نوپه الهی قدرت سره دا غوښه مرغه شو، اوهره ورځ به دخلکو حجرو

او دیر و ته ور ته او داسندره به یې ویله :

تیله مرغې تیله — یوه مې موروه
یومې پلار و — پلار ور ته نیولم
مور حلالولم — یوه مې سورکې خوروه
په یوه کوزه کې یې سا تلم
تیله مرغې تیله مرغې تیله

کله چې مرغه داسندره وکړه، نو خلکو ته به یې د یرز یات خوندور کاوه او دغه مرغه ته به یې دانې ورکولې. یوه ورځ دې خپل کور ته ورغې او داسندره یې بیاوکړه:

تیله مرغې تیله — یوه مې موروه
یومې پلار و — پلار و رته نیولم
مور حلالولم — یوه مې سورکې خوروه
په سره کوزه کې یې سا تلم
تیله مرغې تیله مرغې تیله

کله چې مرغه داسندره وکړه میرې او پلار یې دکا بنې وار ور باندې وکړ، دی هم والوته! مرغه به چې څو مره پیسې پیداکولې په هغو باندې به یې میوې او شیرینی کولې بیابه یې کو رته راوړې او خپلې خور ته به یې له هوانه وراچولې دده خور پوهیده چې دا زما ورور دی او هغه ته ته غوښه چې کوزې ته ورو اویدلې وه، دخدای په قدرت سره مرغه شو. خور به یې هره ورځ ژړل خو چاره نه وه.

کله به چی ددې ورور (مرغه) راغی نوخوربه یې همیشه دانې او نورشیان ورکول. ده به هم له باغونځه میوې ورته راوړې یوه ورځ یې میرې او پلارمرغه ته ویل چې موږ ته هم میوه راوړه یو ځه مو ده یې خپل پلار ته اومیرې ته میوې او پیسې او نور شیان راوړل اود خپل پلاراومیرې اعتباریې سبه پوخ شویوه ورځ یې دمیوې په منځ کې زهر کیښودل بیایې ورته راوړه کله چې میرې او پلاریې په زهرو ککړه میوه وخوړه نودواړه مړه شول. مرغه هم دخدای په قدرت سره همااغه هلک شو او دخپلې خورسره یې نیکمرغه ژوند تیراوه.

# ډاډانی او منګرانی

ډاډانی دیوې کونډې ډېرساده او بې عقله زوی وچې چا به څه خبره ورته وکړه نوډاډانی به بې له کوم فکر او چرت څخه منله. کله چې لوی شونو مورېې ورته وویل چې: ډاډانی زه مېړه کوم خو ته نن ورځ له کوره وو زه، هر شی چې په مخه درغی کورته یې راولـه هغه زمامېړه دی که سړی وی که لېوه وی که سپی وی که منګوروي اوکه هرشی وي خو چې په لومړي وار هغه په لاره د رشی نو حتماً به یې کور ته راولی هغه، چې ډاډانی ته په لومړی ځل منګور پـه مخه ورغی . ډاډانی منګورته وویل چې : منګوره ماته خپلې مـور ویلی دي چې نن ورځ هرشی چې په لومړی وار په مخه درشی کور ته به یې راولی او هغه زمامېړه دی تـه نو زماسره کورتـه لاړشه! هغه وچې منګوردډاډانی سره کورته ولاړ بس نومنګوردډاډانی د مـور مېړه شو. شپې ورځې کلو نه اووختونه تېریدل ډاډانـی د مور څخه د منګوربوزوی پیداشوچې نوم یـې منګرانـی ورباندی کېښود . منګرانی چې لږلوی شونو ډېر هوښیاراوچالاك واوډاډانی چې ډیـر کم عقله اوساده وه دمنګرانی ورسره زیاته مینه اومحبت واوډیـر

زیات نو ربانډي گران و .

یوه ورځ دداداني اومنګراني مور اومنګور سره مصلحت او مشوره وکړه چې داداني به مړ کړو هغه وچي یوه ورځ مور یې داداني ته وویل چې ته غره ته لاړشه او لرګی راوړه دداداني مور خپل میړه (منګور ته وویل چې کله چې د غره څخه داداني راغی نو دیرزیات به وزې شوی وی ته به دخاورو کوزې ته ځان ورواچوې چې وریجی پکې دی اوو به یې چیچې او زه به داداني ته ووایم چې دودئ خونه ده پاتی ورشه دهغه کوزې څخه وریجی راواخله هغه وخوره هغه و چې منګور کوزې ته ځان ورواچولو کله چې داداني دغره نه راغی او مورته یې وویل چې مورې زه دیروزی شوی یم لږه دودئ خوراکړه موریې ورته وویل چې دودئ خونه ده پاتې ورشه دهغې کوزې نه وریجی دروا خله منګراني چې د یرهوښیا را او په ټولو خبرو پوه وکله چې داداني کوزې ته ورنږدې شو سم دلاسه یې منګراني لاس ونیو او داداني ته یې وویل چې که ته وریجی راواخلې زه یې درته راخلم هغه وه چې منګراني وریجی ورته راواخیستی اوداداني یې دخپل پلار اومور دمرګ له پنجو څخه خلاص کړ بل ځل بیاښځی اومیړه مصلحت سره وکړ کله چې داداني دغره څخه لرګی راوړي نو ته به دهغه پله لاندې کښینی چې دی ورباندې راځي کله چې داداني دغه پله باندې تیریږي په پنبه باندې به یې وچیچې ، کله چې بله ورځ داداني غره

ته ولاړه او لړ گی یی راوړلو دپاره تیار کړل نو یی دلړ گیو پیتمی په شاکړ او د کور په خوا روان شو تر نیمایی لارې منگرانی هم وړو رسیده کله چی داداني پله ته نژدې شو منگور هم غلی دپه لاندې ور ته ناست و منگراني بیاهم په تولو خبر رخبرو دادانی ته یی وویل چی په او بو باندې گـډشه په پله باندې مهٔخه داداني منگرانی ته ډیر سوالونه او زاری و کړې چی ورور ه ډیر ستړی یم په پله باندې به ولاړ شم په او بو باندې نه شم گډیدای مگر منگرانی داداني مجبو ر کړ چی په او بو باندې گډشی او په پله باندې لاړ نه شی هغه وچی دادانی په او بو باندې گډشو او دواړه کور ته راغلل، او په دې واریی بیادادنی له مرگه څخه خلاص کړ. بیا بیا څی او میره سره وویل کله چی دادانی غوره ته لاړ شی اولړ گی کوي کله چی دوړلودپاره تیار وي نو ته به دلړ گیو په مینځ کی ننوزې کوم وخت چی لړگی په شاکړې او راروان شی نو ته به یی په شا باندې وچیچی. هغه وچی په یوه لار باندې دادانی غوره ته لاړ او په پله لار باندې یی پلار شاته وریسی ورغی کله چی دادانی لړگی دوړلودپاره جوړول نو په دې وخت کی منگرانی هم وروسیده منگور غلی دلړ گیو په منځ کی ننووت. منگرانی چی په چالو نو باندې پوه و دڅان سره یی داور قطی هم راوړی و کله چی دادانی تول لړ گی په رسی و تړل او دوړلودپاره تیار شول نو دلته منگرانی داور تیلی ور ته وواهه او لړگیو ته یی اور ورکړ، دادانی نارې کړې چی اې ورورهٔ مه یی سوزوه ډیره سخته خواري می ور باندې کړیده مگر منگرانی یی خبره

ونه منله منګوریې د لرګیوپه منځ کې وسوزاوه اودواړه کورته راغلل.
وروسته له هغه منګرانی خپل وروردادانی ته وویل په هغه ورځ چې تادکوزې څخه وریجې اخیستې اوماته پریښودې چې راوایې خلې هلته زما پلارپه کوزه کې درته پټ شوې واو ته یې چیچلې . په هغه بله ورځ چې می ته په پله باندې نه پریښودې، اوپه اوبو مې ګډه کړې هلته هم زما پلارپه پله کې درته پټ شوې و، هلته مې هم دده له چیچلو څخه خلاص کړې ،اونن ورځ مې چې لرګي وسوزول هلته هم دی د لرګیوپه منځ کې ؤ ته یې چیچلې اودې په عوض چې تامړ کړي خپل ژوندیې دخاو رواوایرو سره ګډه کړ. کله چې منګور مړشو هغه یې راواخیست اوپه یوه ونه کې یې ځوړ نه کړ دلاندې یې یولوښی و رته کیښود ترڅوزهریې چې توېشول هغه یې کورته راوړل، او منګرانی خپل ورور دادانی ته وویل چې اوس راځه چې خپله مورمړه کړو، دادانی هم ور سره ومنله ، کورته چې راغلل که ګورې چې موریې وریجې پخې کړیدې.
منګرانی دادانی ته وویل چې: ګوره چې څه شی ونه خورې مورته به وایې چې موږ دوډۍ خوړلې ده. موریې دخپل میړه ډیر انتظار ویوست لاکن میړه یې رانه غی وروسته له هغه یې دوډۍ تیاره کړه اوورته یې وویل چې: پلارمو رانه غی، راځئ چې ډوډۍ وخورو دواړو خپلې مورته وویل چې موږډوډۍ خوړلې ده، ډیرماړه یو، نه یې خورو ته یې وخوره. موریې هم دومره ډوډۍ واچوله چې خوړلای یې شوه وروسته له هغه منګرانی دخپل پلارزهرپه داسې وخت کې په ډوډۍ

باندې واچول چې دموریې هیڅ پام نه وکله چې موریې دودې وخوړه وضعیت یې بدل شو، دوې دواړه قرار شملاستل. سبا ته چې راپا څیدل موریې مړه شوې وه هغه وچې منګرانې خپل موراو پلار دداداني محبوبیت ته وقف کړل. کله چې موریې خاوروته وسپارله وروسته له څو ورځو دواړه په خواري اوغریبي پسې بل وطن ته ولاړل، منګرانې داداني ته وویل چې: ته هم چیرې مزدوري پیداکړه او زه به یې هم چیرې ولټوم. هغه وچې دواړه دمزدوری په پیداکولو پسې روان شول داداني چې ډیرساده او بې عقله سړې ؤپه یوه کلي کې دیوه داسې سړي سره چې ډیرې څمکې پیدې او دمیزورمی بې درلودې مزدورشو، لاکن سړي داداني سره څو شرطونه کینبول.

لومړی سړي ورته وویل چې دوچې دودی څملای باید ماتې نه شي دوهم داچې او به دمشك له خولې څخه نه څښې دریم شرط دادی چې هره شپه به یوخریز غوښه راوړی نورهرڅومره پیسې چې غواړی درکوم یې. که چیری له دی شرطو څخه پښیمانه شوی نه به دی مزدوری درکوم اوهم به دی غوږاوپزه پری کوم اوکه چیری زه پښېمانه شوم نوزما غوږاوپزه به پری کوی.

داداني داخبره ورسره ومنله، مګر کله یې چې دوې ورځې کاروکړ نوپښېمان شو ځکه وچه دودی یې چې دخلاو دلوری نه خوړلی نه وای بله چاره یې نه درلوده اودخلو له خواخوړل په ده باندی بندو او به یې هم دمشك له خولې څخه نه شوی څښلی بل چل یې یادنه و

په دریم شرط کې هم پاتې شو او یو خر بزغونبه یې هره ورځ نه شوه پیدا کولای، بس نو مجبور شو سړي ته یې غوږ او پزه ورونیول سړي هم په چاقو تري پرې کړل. دسړي څخه راغی مزدوري یې هم ونکړه، غوږ او پزه یې هم لاړل وروسته له هغه داداني منګراني ته ورغی، مخ یې په لنګۍ باندې تړلی و، منګراني پوښتنه تري وکړه چې وروره څه چل دی؟ داداني ورته وویل چې ماخو غوږ او پزه دواړه وبایلل. نکل یې تول ورته تیر کړ، منګراني ورته وویل ترخو چې ستاغوږ او پزه ونه ګټم دومره به زه رانشم دواړه سره روان شول، دسړي کلي ته ورسیدل. داداني ته یې وویل چې ته په کم ځای کې شپه وکړه منګراني چې کلي ته ورغی دسړي پوښتنه یې وکړه سړي بې پیدا کړ او ورته یې وویل، چې وروره مزدورنه نیسي، هغه ورته وویل چې ولې نه راځه لاکن زما مزدوري شرطونه لري، که چیري هغه شرطونه دې په ځای کړل خو مزدوري به راسره کوې زه به پیسې درکوم که چیرې پښیمان شوې پیسې به دې هم نه وې غوږ او پزه به دې هم پرې کوم، که چیرې پښیمان شوم نو زما غوږ او پزه به پرې کوې. منګراني داخبره په ډیره خوښۍ سره ومنله او پوښتنه یې تري وکړه چې شرطونه دې څه ډول، دې سړي ورته وویل چې اومړی شرط داسې دی چې دوچې ډوډۍ خښلې به نه ماتوې نوریې دهرلږ ري چې خوري درته اجازه ده، دوهم شرط دادی چې او به به دمشك له خولې څخه نه چښې، دریم شرط دادی چې هره ورځ به یو خر بزغونبه راوړې منګراني

دشر طو له منلوو روسته په خپله مزدوری بساندی پیل و کړو . دو دی
به یی دیوی په ځای دوی غوښتی ځندی به یی نه ماتولی د منځ لـه
خوا به یی ماتولی او به به یی دمشلك له منولی ځخه نه چښلی او پـه
بیخ کی به یی په چاقوسوری کړاو به به یی تری ځښلی نور به یی مشلك
(ژی) په ځمکه باندی واچاوه غوښه به یی دده له میزو او غواځخه
پیدا کوله ، هره ورځ به یی یاغړاا و یا میزه ورته حلالوله په ورځ کی
به یی څلور یا پنځه وچی دو دی او وه یا اته مشکو نه یوه یا دوی غوار
وی سړي ته تاوان ور کاوه . سړي د منګرانی ځخه ډیر په عذاب شو بله ورځ
سړي ورته وویل چی منګرانی بیګا ته بابد یو خر وار زدن و کړی . منګرانی
هم په ځمکه کی یوځای و کیندلو او توول زدن یی ورتوی کړل بیا یی
خدکو ته وویل چی له دغه ځای ځخه زدن وړئ . سړي ډیر په عذاب
شو بله ورځ یی ورته وویل چی منګرانی زما مور ناروغه ده ، زه چیری
ځم ته زما دمور ځخه مچان شړه چی په تکلیف یی نه کړی - سړي چی لاړ
دمور په مخ باندي یې مچ کښیناست منګرانی په یوه تیږه باندی دسړي مور
په مخ باندی وویشته مړه یی کړه . سړي چی راغی پوښتنه یی تری و کړه
چی زما مور ځنګه ده؟ ده ورته وویل : چی مور دي مړه شوه دمور په
مخ باندی دي مچ کښیناست ما په مچ باندی دتیږی ګـذار و کړه غه
می مړ کولو مچ او مور دی دواړه مړه شول . سړي ډیر پـه عذاب شو
منګرانی ورته وویل چی که پښیمان وی نو غوږ پزه دی راو نیسه چی
پری یی کړم ، بله ورځ دسړي کوچنی لور ته معذرت پیدا شو مړي ورته

وویل چې منګرانی جلی معذرت ته بوزه، منګرانی دسړي اور معذرت ته بوتله هلته یی په جلی پسی چاقو و یوست چې ګوره معذرت و نه کړی او که دی و کړ په چاقو دی و هم. جلی د دیری ویری هیڅ شی و نه کړه بیرته راغله دوهم وار بیا جلی وژړل چې ماته متیازی راغلی. دی سړي بیا به منګرانی باندی غږ و کړ چې هله جلی د باندی و باسه منګرانی دری واره داعمل تکرار کړ په څلورم ځل بیا جلی وژړل سړي په قهر شو منګرانی ته وویل چې شپه یی تشه کړه چې بیا و نه ژاړی. منګرانی چې دا خبره واوریده په منډه سره یی دسړي لور د باندی وایستله او هلته یی دسړي د لور ګیډه په چاقو باندی څیری کړه سړي ته یی لورمړه راوړه او ور ته یی وویل چې صاحب ګیډه می په چاقو ر باندی څیری کړه د متیازو څخه می شپه پاکه کړه بیا به نه ژاړی او نه به معذرت ته ورځی، سړي چې لور ولیده نو ډیر خفه شو منګرانی ور ته وویل چې که پښیمان وی نو غوږ پزه راونیسه چې پری یی کړم.

سړي چې دا حال ولید نو فکر یی و کړ چې لور خو می مړه شوه مور می مړه شوه. غواوی غوایی، میږی او نور هر څه می چې لږ ل تول خاوری شول په غلا و باندی می خلکو مزی وکړی زما دارایی او هستی یی ټوله تباه کړه، نو اوس باید زه او ښځه می له دی کوره ووځو. او د منګرانی له شر څخه ځانونه خلاص کړو، وروسته له هغه یی ښځی ته وویل: چې په غوړیو کی دوه دی پخی کړه، چې تر پلار شو، او کور

منګرانی ته پریږدو. ښځې یې په غوږ بوکې دودې پخې کړې او د پوزی لوښی ته یې واچولی، ښځې یې چې لږې دودۍ د پوزې لوښی ته واچولی منګرانی هم ور ننووت نورې دودۍ یې هم ورواچولی سړي او ښځې یې منګرانی نه ولیدلی چې د پوزی لوښی ته ور ننوتلی دی او مخکې تردی سړي منګرانی ته ویلی و، چې ته په کور کې پاتې شه، موږ نن د خپلوانو کره ورځو ته ځو، مګر منګرانی پوه شوی و ښځه او میړه سپاره دواړه وختی روان شول تر ولاړه ورځ یې مزل وکړ، دیوه سیند پرغاړه وربانده شپه شوه د شپې سړي ښځې ته وویل چې ښه شوه چې اوس د منګرانی څخه خلاص شو، منګرانی دستی د پوزې له لوښی څخه راووت او ورته یې وویل چې تاسې له ما څخه نه شئ خلاصیدای. د لته د سړي په زړه بیا اور بل شود شپې یې ښځې ته وویل، بیګاته چې خوب یوولی شی، سیند ته به یې ورواچو کله چې شپه شوه تر ول سره څملاستل د سړی ښځې خپل کمیس وکیښس او ځنله چې تیر شو منګرانی د سړي د ښځې کمیس و اغوست کله چې ښه شپه تیره شوه سړي ښځه وچیچله چې جګه شه چې منګرانی سیند ته ورواچوو. منګرانی چې د سړي د ښځې کالې اغوستې وو ور جګ شو د سړی ښځه خو بیوولی وه سړي دا فکر وکړ چې منګرانی خو بیوولی دی مګر هسی نه وه سړي خپله ښځه د پښو او منګرانی د سر څخه ونیوله سیند ته یې ورواچوله، په آخر کې منګرانی غږ وربانده وکړ چې څنګه شړي ښځه می سیند ته دربانده واچوله کنه، سړي چې پوه شو چې ښځه می سیند ته

وراچولی ده او منکرانی پاتی شویدی ډیر غمجن شواوویی ژړل منکرانی غږ په وکړچی که پښیمان وي غوږ پزه راو نیسه چی پرې یی کړم سړي مجبور شو غوږ پزه یی ورونیول منکرانی په چاقو باندې ترې پرې کړل منکرانی ورته وویل چی زمادورور (ډاډانی) غوږاو پزه دومره آسان ووچی تاپرې کول، نورترې روان شو. ډاډانی ته چی ورسیدورته یی وویل چی وروره ستاغوږاو پزه می وګټل دغه دی دسړي غوږ او پزه می دواړه راوړل .

# څلور ځګان

یوه سړی درې زامن لرل، دی هم په خپله سپین ږیری و. دوی دومره غریبان وو چې په هیڅ ځای کې کار نه ورته پیدا کیده. د خپلې غریبۍ څخه ډیر په عذاب شول، نو د ډوډۍ د پیدا کولو دپاره یې لارې لټولې. لومړی یې مصلحت سره وکړ او ویې ویل چې کار نه پیدا کیږي او د ډوډۍ څخه هم په تنګ شوو، نو راځئ چې په ټګۍ باندې شروع وکړو، پلار یې مشوره ورکړه چې هر یو به د لارې په یو فاصله کې کښېنئ او زه به د آخرین زوی سره یو ځای کښېنم که چا غوا راوسته دوزې به ورته وایو تر څو چې یې ور څخه په ارزانه بیه لاسته راوړو، هر یوه خپل تا کلی ځای ته ځانونه ورسول. یوه سړی په ډیر لرې وطن کې غوا اخیستې وه پر لار راروان دی، د سپین ږیری د لومړی زوی ځای تــه چې ورسید، هغه غږ پرې وکړ، چې اې مسافره! دغه اوزه دې چېــرې روانه کړې، خر څوې یې نه مسافر ورته وویل چې دغه اوزه نه ده غوا ده. له ډیر لرې وطن څخه مې راوستې ده، نه یې در باندې خرڅــوم مسافر یې په شک کې واچاوه، ترې روان شو مسافر چې د سپین ږیری د بل زوی حد ته ورسید، هغه هم ورته وویل چې مسافره دغه اوزه دې

نه خرخوی ده‌ورته وویل چی اوزه نه ده، غواده، دډیرلری وطن څخه می‌راوستلی ده او په ډیروپیسو می اخیستـــی ده . دسپین زیری زوی ورته وویل چی پ،دی اوزه باندی یی غولولی یی دغواپه بیه یی دربا ندی خرڅه کړیده. ده ته یی هم څراب ورکړ، چی نه یی دربا ندی خرڅوم تری روان شومګر، چرت یی ډیر زیات خراب شو. کله چی مسافـر دسپین زیری اودزوی ځای ته ورسیده هغوی هم دغه خبره ورتـه تکرار کړه مسافر فکروکړ، چی رښتیادغه اوزه ده اوزماپـه ستر ګــو غوار ځی. دغواپه‌بیه یی راباندی خرڅه کړیده دسپین زیری زوی‌ته یی وویل: راځه چی دربا ندی خرڅه یی کړم ، نوسمدلاسه سپین‌زیری ورته‌وویل : چی‌زه به یی درته‌بیه کړم، هغه‌وچی غوایی‌داوزی‌په قیمت بیه کړ. مسافرهم ورکړه‌پیسی‌یی مسافرته ورکړی هغه په خپله مخه لاړغوایی کورته راوسته، بله ورځ یی یوه بل سړی ته دغه چل برابر کړیوه سړی چی‌اوښ یی‌اخیستی‌ؤ پورتنی چل‌یی‌پری‌ؤکړ اواوښ یی دغواپه بیه تری واخیست دریم‌وارچی یوه بل‌سړی‌پسه اخیستی‌ودغه خبری‌یی بیااورته شروع کړی سړی‌چی داخبری‌واوریدی نوپسه یی دسپی‌په نوم خوشی کړ، هغه‌وچی‌ځلوروتـګانوله دی لاری نورخپله ګذاره شروع کړه .

# چخلکی

چخلکی دیوی کوندی لمسی و. پلار او مور یی دواړه په کوچنیوالی کی مړه شوی وو. چخلکی، د کوچنیوالی څخه ډیر ساده او کم فکره و. د چخلکی، نیاډیر کوشش کاوه، چی لمسی یی ژر لوی او ځوان شی ښه ښه خوړا کونه به یی ور کول، نهایی فکر کاوه چی لوی شی نو ساده والی او بی عقلی به یی هم ور که شی. ځکه یو سړی چی څومره لوی او ځوانیږی، په همغه اندازه په خپلو کړو وړو او ښو او بدو ښه پوهیږی. مگر چخلکی چی څومره لویده هغو مرد به نور هم ساده او بی عقله کیده، خو اخر چخلکی، د خپلی نیاډیرو زحمتو نو او خوار یو په بر کت ځوان او لوی شو. د چخلکی نیاډیره هوښیاره او با تجر به ښځه وه ځکه چی ډیر وخت یی په تکلیفو نو کی تیر کړی ؤ. په هغه وخت کی ټولو خلکو به د کلی مشر ته خان یا پادشاه وایه یوه ورځ د کلی د خان سپی د پیسو امیانی په خوله کی نیولی وه او د چخلکی د نیا پر خوا روان دی، او د لیته د کوندی سره خپل لمسی (چخلکی) د م ناست دی سپی چی د چخلکی نیا ته را نژدی شو د چخلکی نیا و رباندی د کانړی وار و کړ، د سپی د خولی څخه د پیسو امیانی و لویده، هغه امیانی کوندی

راو اخیستنه اوکورته یې راوړه. دچخلکي نیا خپل لمسي ته وویل چې کوټې ته ننوزه ډیر سخت دشکري باران اودباد طوفان دئ ته دکوټې دسورې ( دریڅې) لاندې کښېنه زه به شکري درتویوم اوته یې خوره چې دباد طوفان دې یو نسې حال دادې چې شین آسمان و نه دشکرې باران و اونه دباد طوفان . خو چخلکي چې ډیر ساده سړی و، اود خپلې نیا خبره یې ومنله کوټې ته ننووت، دسورې لاندې کښېناست نیایې لږه شکره را واخیسته اودکوټې د سورې نه یې لږه ور تویوله چخلکي به ورپسې ښتمله ( خوړله) وروسته له څه وخته چې چخلکي ته شکره ورخلاصه شوه، او نیایې دپیسو امیانۍ په یوه پټ ځای کې کیښوده وروسته له هغه یې چخلکي ته غږو کړ چې راځه دشکري باران اودباد طوفان تیر شول چخلکي هم دکوټې نه راووت وروسته له دوو ورځوڅخه دکلي خان ډندوره ووهله او ټولو خلکو ته یې خبر ورکړ چې زما دپیسو امیانۍ ورکه شویده چخلکي چې ددې آوازې نه خبر شو سمدلاسه دکلي خان ته ورغی او ورته ویې ویل چې دپیسو امیانۍ ستاسې په خوله کې نیولې وه، اوزمانیا ستاسې په کانې ماندې وویشت امیانۍ یې دخولي وغورزیده اوزمادې کورته راوړه. خان یې خبره ومنله مگر وروسته له هغه خان پوښتنه تری وکړه چې کومه ورځ وه، چخلکي ورته وویل په هغه ورځ چې دشکري باران اودباد طوفان و. خان چې داخبره واوریده ورته ویې ویل چې ورک شه دروغ وایې. چخلکي تری راغی کله چې دچخلکي نیاددې خبرې نه خبره

شوه، په چخلکی باندې یې ډیر زیات منت وکړ اوورته یې وویل چې بیا داسې کارونه کړې . په دې وارد چخلکی نیا دخان لــه پنجـو (دچخلکۍ په دې خبره چې دشکری باران او دباد طوفان و) خلاصه شوه بله ورځ بیاچخلکی دخپلې نیا څخه پوښتنه وکړه چې ادی جلی څنګه مینه کیږی، نیا یې ورته وویل: چې دجلی کورته چې یوه ورځ بله ورځ . . . لوټې او کانې ورو شړی جلی خپله مینه کیږی نیا یې داخبره دټوکو په ډول ورته وکړه، چخلکی چې داخبره واوریده نو دخان باغ ته ورغی اودخان لوریې په کانې باندې سر ټــه وویشته مړه شوه خوله یې خلاصه اوغاښونه یې سپین ونیول، چخلکی سمدلاسه کورته راغی اوخپلې نیاته یې وویل چې ادې مادخان لورپه کانې سرټه وویشته اوپه مابانـدې مینه شوه نیایې چې داخبره واوریده ډیره وارخطا شوه په منډه دخان باغ ته ورغله که ګوری چې دخاـلو رمړه شوې ده. سمدلاسه یې دخان لور کوهی ته ور واچوله اوچخلکی ته وویل چې ته ورځه کورته چخلکی چې کورته ولاړ اودنیا ستر ګونه پنا شونویې سیرلۍ (داوزی زوی) حلال کړ اوهغه یې هم څاته ورواچاوه نوره دچخلکی نیا کورته راغله. پس له څه وخته خان دخپلې لور پوښتنه کوله چې چیری ده لاکن هیچاته پته نه وه معلومه وروسته له ډیر تلاښ اولټونې څخه خان خلکوتــه خبرو کړ چې زمالور ورکه شویــده.

چخلکی چې داخبره واوریده بیا خان ته ورغی او ورته ویې وویل: چې ستالـورمې مینه کوله په کانې بانــدې مې وویشتــه بیامې

نیاته داخبره وکړه چی په ماباندی دخان لورمینه شوه پـه کانی می وویشته،نیامی ستاباغ ته راغله اوستالوریی کوهی‌ته وروا چوله خان خلک کوهی‌ته ور کوز کړل که گوری سیر لی یی راوو یستله. دلوردرک یی معلوم نه شو،خان چخلکی‌ته وویل چی دروغجنه بیاچی داسی دروغ ونه وایی لیونی بی دکورڅخه مه راوزه. دچخلکی نیا چی بیا د دی خبری نه خبره شوه چخلکی یی دومره ډیرو وهلو چی بیادکورڅخه دباندی ونه ووت .

# دریم فصل

## دودونه

پښتنو له ډیره وخته دخپلو محیطي شرایطو اونورو عنعنوي اصولو سره سم داجتماعي ژوند کړووړو له پاره په خپلو منځو کې ځینې قومي او اولسي تړونونه او پریکړې جوړې کړې، او دهغو تړونو او پریکړو مطابق خپل ورځینې کارونه کوي. دغه اصول، او دودونه له هماغه پخوا وخته په اولس کې پاتې شوي او د اولس خلکو د یوه منل شوي شي په توګه ورڅخه کار اخیستی دی. دغه دودونه د پیړیو په اوږدو کې له یوه نسل څخه بل ته پاتې شوي او تر ننه پورې د پښتنې سیمو په بیلا بیلو برخو کې په هغو دودونو چلند کیږي او عوام خلک د خپل اجتماعي ژوند ټولې چارې د د غو دودونو له مخې ترسره کوي. ځینې دودونه په اولس کې د خپل اهمیت د لاسه ورکولو له امله له منځه تللي دي او ځینې لا تراوسه هماغسې پاتې او په خلکو کې د منلو وړ دي.

موږ په عمومي ډول د پښتنو دودونه په دریو عمده برخو ویشلي شو. لومړی هغه دودونه دي چې د کلونو او وختونو په تیریدو کې منځ

ته راغلي،و ده اوانکشاف یې کړې مګر په آخر کې بیاد زوال سره مخامخ شوې او بالاخره له منځه تللي دي. دوهم ډول یې هغه دودونه دي چې په یوه دوره کې منځ ته راغلي اوډخلکوتر منځ یې کړی ټینګه کړې ده ،مګرد یوې بلې دورې په منځ تـه راتلوسره یې اهمیت او ارزښت لږ شوی دی خو بیخي له منځه نه دي تللي، او د منځه تللو په حال کې دي . دریم یې هغه دودونه دي چې له ډېرې پخوانه راپاتې او یا یې په پخواوختو کې خښته ایښودل شوې دوخت پـه تیریدوسره یې انکشاف موندلی او اوس داسې حالت نه رسیدلی دي چې په ټولنه کې خورا ټینګ شوي دي او دهغو له جملې څخه ځینې بیاداسې مرحلې ته رسیدلې چې دعامو خلکوله پاره یې ډېره ندردوونکې اوملامتوونکې بڼه غوره کړې ده. اه دودونو څخه دبشري ټولنو داجتماعي روابطو ،روحي او کلتوري خصوصیاتو او کړووړو په سپړنه او څېړنه کې ډیره په زړه پورې استفاده کیدای شي.همدغه دودونه دي چې د بشر پوهانو له پاره د یوې جامعې د خلکو په څېړنه او هراړخیزه پوهیدنه کې ډیرگټور او با ارزښته بریښي .

د پښتني کلتور دغې خوندورې برخې ټولو لوته زموږ د ټولنې دکلتوري خصایصو د پوهیدنې پـه منظورپـه هرساحه کې ډیره اړتیا لیدل کیږي . که څه هم د دغو دودونو د ټولولوله پاره له څو مودې را په دې خوا کار پیل شوي ، خو لـکه څنګـه چې معلومـه ده د ټولو پښتني سیمو دودونه تراوسه نه دي راټول شوي . که له هغوخورو ورو

مقالوچې د پښتو په خپرونو او دکوټې په اولس مجله کې او زموږ د هېواد په بېلا بېلو خپرونو او د خپلو اکې ترون پـه زیاترو گڼو کې خپرې شوې تیر شو - بڅپړ کار په دې برخه کې په پراخه پیمانه نه دی شوی او تر اوسه د غـه لانـدې درې مستقل کتابونـه موږ تـه پـه دې موضوع باندې معلوم دي :

۱ - پښتنې دودونه : دغــه اثر د ښاغلو محمد گلاب ننگرهاري عبدالخالق واسعي ، محمدعالم اتمان او محمدابراهیم ثابت له خوا په گډه لیکل شوی د کندهار، پکتیا او غزنی د ځینو سیمو دودونه یې پکې معرفی کړي دي (۱)

۲ - زمونږ ژواك : په دغه کتاب کې د بلوچستان د پښتنو دودونـه (له زانگو نه تر هدیرې پورې) ښاغلی عبدالقدوس پوپل را ټول کړي دي (۲)

۳ - د پښتنو دودونه : د ښاغلی غلام محمد تألیف دی ، چې د غزنی د شاوخوا او مقر د پښتنو دودونه پکې راوړل شوي دي (۳) .

همدارنگه په ځینو کتابونو کې چې د بېلا بېلو پښتنې سیمو په کلتور لیکل شوی هلته هم دهماغو سیمو د پښتنو دودونه لږو ډیر معرفی شوي دي .

هغه آثار چې دپښتنې دودونو په باب مستقل خپر کې لري دادي:

۱- هلمند د کلتور په ساحه کې : ددغه کتاب په څلورمه برخه کې

---

۱- دغـه کتاب (۲۰۱) په مخونو کې په ۱۳۳۶ هـ - ش کال پښتو ټولنې خپور کړی دی .

۲- وگوری! زموږ ژواك (۱۱۷) مخونه (۱۹۷۲) ع کال دکوټې چاپ پښتواکډمی .

۳- دپښتنو دودونه په ۱۳۵۳ ش کال په (۲۳۲) مخونو کې د ادب او فلکلور د آمریت له خوا چاپ شوی دی.

دهلمند دخلکودعرف اوعادات ترعنوان لاندې دهلمندي پښتنودمړي اوواده دودونه راوړل شوي او هم يې ځينې نورعادات اوړ واجونه يکي راغلي دي (٤)

٢ ـ پښتانه لومړی توك: ددغه کتاب د(مومند) په بحث کې دمومندو په ځينو دودونو رڼا اچول شوې ده (٥)

٣ ـ پښتانه دوهم توك : په دې کتاب کې داپريديو (٦) اوركزيو (٧) اووزيرو (٨) پښتنو ځينې دودونه راوړل شوي دي .

٤ ـ کندهار : په کندهار نومي کتاب کې ( دکلتوري وضع) ترسرليك لاندې ددې سيمې ځينې دودونه راغلي دي (٩)

٥ ـ فولکلوري گيډۍ: ددې کتاب په يوه فصل کې دودونه دي او په دې دودونو کې دمنګلو دسيمې په ځينو دودونو رڼا اچول شوې ده (١٠)

٦ ـ اولسي پوهه: ددغه کتاب يو فصل دودونه دي او په هغه کې د واده دود، دمړي دود ،دجوړات دتودولو او ځينې نوردودونه د پکتيا دمنګلو دسيمو معرفي شوي دي (١١)

---

٤ـ وگوریء! هلمند دکلتور په ساحه د ښاغلي عطايي (٣٧ ـ ٦٢ مخونه) ١٣٤١ هـ ـ ش کال د لينکرگاه چاپ.

٥ـ وگوریء! پښتانه د دوهم تـوك ٨٣ ـ ٩٦ مخونه (١٣٥٠ هـ ـ ش کال دکابل چاپ)

٦ـ وگوریء! پښتانه لومړی تـوك ١٣٢ مخ نا وروسته (١٣٤٩ع کال دکابل چاپ)

٧ـ همدغه کتاب ١٥١ ـ ١٥٣ مخونه

٨ـ همدغه کتاب ١٨٢ ـ ١٨٦ مخونه

٩ـ وگوریء! کندهار ٢٢٧ ـ ٢٦١ مخونه ١٣٥١ کال چاپ د ښاغلي محمد ولي ځلمي.

١٠ـ فولکلوري گيډۍ ٧١ ـ ٨٢ مخونه د ١٣٥٥ کال چاپ.

١١ـ وگوريء! اولسي پوهه، دعلي محمد سوبمن ١٧ ـ ٩٠ مخونه د ١٣٥٦ کال چاپ.

ماهم وغوښتل چې د پکتیا دخوست د سیمې د ځینو هغو د دو نو نمونې راغونډې کړم چې اوس له منځه تللي او یا د منځه تلو په حال کې دي، او ځینې یې تر اوسه پورې شته . دغه دودونه زما د کتاب یو فصل جوړوي هیله ده چې زما دغه زیار او د نورو ښاغلو لیکوالو هاندا او کوښښ چې په دې برخه کې یې کړي د پښتني ژواك په خیر نه کې له محققینو سره مرسته وکړي .زه لو مړی هغه دودونه دنمونې په توګه راوړم چې اوس زموږ په اولس کې شته او بیا به هغه دودونه را و ړ ل شي چې اوس د منځه تللو په حـال کې دي او په پای کې به هغه دودونه راوړم چې اوس هم شته . یوه بله خبره چې دلته یې یا و دل ضروري دي دا ده چې د پښتني دودونو د تـولو لـو پـه لـړ کـې ا رو پایا نـو هم کـار کـړی دی هغه استعمار ګرا ارو پایان چې د (۱۹) پیړ ۍ په حدودکې د پښتو نخـوا سیمـو ته ددوی د لوتلو او ز بیښلو د پاره راغلل په دوی کې ځینې داسې خلك هم وو ،چې د پښتني کلتور او ګړ نې ادب ځینې نمونـې یـې هـم راټولې کړې او په خلو ژبو یې په ځانته مجموعو کې خبرې کړې. د(۱۹) پیړې په اوآخر او د شلمې پیړۍ په پیل کې چې انګریزانو د پښتني سیمو په باب کوم (ګزیټیرز) چاپ کړی دي په هغو کې دد غـ و پښتني سیمو په باب د نورو معلوماتو تر څنګه ددوی په دودونو کې هم خبرې شوې دی دمثال په ډول که چیرې موږ د افغانستان، پېښور ،ژوب، سبوۍ او لور- لايي (ګزیټیرز) وګورو په دغو خپرونو کې د پښتني دودونو ځینې اشکال خوندي شوي او د پښتني دودونو لومړنۍ لیکل شوی شکل لـه همد غـو

خپرونو څخه ز موږ ترِ گوتو کیږی .
دغه رنګه دپټی حیات‌خان په «حیات افغانی» کی دځینو پښتنو دودونه راوړی دی .

## داختر په ورځو کی داتڼ دود

دادودله دیرې پخوانه په خوست کی موجودو اوداځو کاله کیږی چی له منځه تللی دی ، ددې دودشکل داسی ؤ :
هغه وخت به چی لوی او کوچنی اختر راورسید نودودوی له خوړلونه وروسته به دهرقوم ټول خلک بالخصوص ځوانان هغه ځای ته تلل چی دوی به خاص داختر دورځو دخوشحالی تیرولو له پاره ټاکلی ؤ. هلته به ډولونه وهل کیدل خلکو به اتڼو نه کول اوسندرې به یی ویلی کله به چی ماز یگرشو نو ټول به خپلو کورو ته تلل سبا به بیا بیرته هماغه ځای ته راتلل دغوننداروبه دری ورځی وخت‌درلود مگر کله کله به ترشپږ واویااوورځو پوری هم اوږدی شوی .
دوخت په تیریدوسره دغه قومی ننداري ورکی شوې او بیابه په ځینوځینو کلیو کی اجراکیدې خو په آخر کی یی داسی شکل و نیوچی دکلی خلک به دکلی د مشهورسړی د یری ته ورتلل او هلته به یی داختر خوشحالی تیرولی مگر په وروستیو کلونو کی دغه‌دود په عمومی ډول له منځه تللی دی .

## دلو یانولوبی

دادودپه دی ډول و:چی دیو ه کلی اویاد څو کلیو ځوانان به سره راټولیدل او هره ورځ به یی خپلی کلیوالی لوبی کولی. سپین ږیری

اونورخلک به ورته ناست وو اودوی دلو بوننداره به یی کو له دالوبی اکثره په ژمی کی له ماز یگرنه تر ماښامه پوری کیدی .
لویانو به د شکر ی د بیدی او تمکو گټلو اونوری لو بی کولی په اوسنی وخت کی دلو یانو لوبی له منځه تللی او یو ازی ماشومان کله کله لیدل کیږی چی په دی لو بو اخته وی .

## دوسلی گرځول

په پخو اوختو کی داسی دودو چی اکثر و خلکو به و سلی لکه تو پک ،خنجر ،ساتوره(پیش قبضه) او نور دهمیشه له پاره له ځانه سره گرځول او خوند به یی تری اخیسته بالخصوص ځوانانو به دا کار دیر زیات کاوه ځینو خلکو خو به دخپلو بدیو دلرلوله امله خپلی وسلی ښو رولی خو ځینو به دخوند له پاره.اودابه نه معلو میدل چی څوك بد لری او څوك یی نه لری مگر په دی وختو کی چی د خلکو دژو ند سطحی یو څه تغیر کړی او توجه یی نورو خواوو ته گرځیدلی ده نو ددغو وسلو دگرځولو دود هم له منځه تللی او یو ازی هغه کسان چی بدی لری وسله گرځوی .

## دغنمو تو لول

دپو رتنیودودونو په لړ کی یو بل د و د هم شته چی پخو ا یی په لو یانو او کوچنیانو کی رواج درلوداو په دی دول وو : کوم وخت چی به دغنمو درمند ونه واخیستل شول نو تو لوخلکو به غنم خپلو

کوروته یوړل په دې وخت کې به دنبزدې کليو ځوانان سره ټول شول دې ځوانانو به يو ياد وه او ياد ری تنه مشر ان لرل داکشر وځوانانو سره به لرګی هم په لاسو کې وو، او يو تن به يو اوږد لرګی درلود په سر به يې کوم دسمال يا سور رخت دبيرغ په نامه تړلی و، دهر کور دروازې ته به دريدل غنم به يې دامين کړ (خيرات) په نامه ترې غوښتل. کله کله به داسې هم پيښيده چې دغه ځوانان به دخپل قوم شخه نوروقومونو ته هم ورپسې تلل او داګرده (۱) به يې کوله. کله به چې بوه شول، چې غنم ډيرزيات ټول شوي دي نو به يې خرڅ کړل او خپل کلي ته به راغلل وروسته له هغه به يې په هغو پيسو ترهغې پورې ميلې کولې ترڅو به چې پيسې ورخلاصې نه وې. کوچنيان به هم ددوی په ډول په غنمو پسې تلل او په همدغه شکل کار به يې کاوه، مګر په اوسنی وخت کې دلويانو او کوچنيانو دغنمو ټولو او دغه دودبڼې له منځه تللې دي.

## د ميلې دود

پخوا دکليو دځوانانو ترمنځ داسې دودو، چې دژمي په شپو کې او يا دکال په داسې وختو کې چې کارونه به بيخې زيات وو، او هر څوك به دخپل کار دلاسه ډير ستړی او ستومانه شوي وو، نو ټول ځوانان به سره ټول شول او هريوه به دخپل قدرت او وس په اندازه

۱» ګرده: خيرات او دغنمو برخې غوښتلو ته وايي.

دخپل کورنه وزیجی، غوری، چرگی اونور لوازم راوړل کله به یې چې دغه شیان سره یو ځای کړه نو دکلی په یوی داسی ښځی باندی به یې پخول چې هغه به صادقه، امانت کاره اوددودی په پخولوکی به یې مهارت درلود او کله به داسی هم کیدل، چې په خپله به ځوانانو دغه شیان دمیلی په تماکلی ځای کی پخول. دودی به یې چې وخوړه نو په اتنړو، ساز او سندرو اودشعروویلو په مسابقوبه یې پیل کاوه ترهغی چې ټول ښه ستړی شول بیابه خپلو کوروته تلل اوس دغه دودهم له منځه تللی دی.

ددو دونو په دوهمه برخه کی به ځینی هغه دودونه دروښیوچې دمنځه تلو په حال کی دی:

## دزوی پیدا کیدل

پخوابه چې دچاپه کور کی یوزوی ماشوم (هلك) پیداشو، او هغه هم په داسی حال کی چې نوموړی سړی به په خپل کور کی بل هلك اونارینه اولادنه درلود، دتربورانو اودښمنانو له خوابه زیات په تکلیف واویا به یې لومړنی زوی ؤ نوخپل نژدی دوستان اوکلیوال به ورته راتلل دټوپکودزی به یې کولی اوخپلوانودوستانو به یې په شپوشپو اتنړونه اوسندری اوخوشحالی کولی اونوموړی سړی په کور کی به تردیره پوری میلمستیاوی وی . ټولوخپلوانو، دوستانواوآشنایانو به دماشوم دکورنی په خوشحالی کی ځان شریك گانه. ننورځ خبره دی ته را

رسيدلی ده چی نه په هغه اندازه د توپکو ويشتل شته او نه د خپلوانو آشنايانو او کليوالو خوشحالی . په محينو کـور نيو کی کله کله داسی هم پيښيزی چی دماشوم په پيداکيدو باندی خپلوان ، آشنايان او کليوال تر خوشپو و رځو پوری نه خبر يږی او نه د هلك پلار په شپوشپو ميلمستياوی کوی دغه ټول دو ددستور صرف يوی شپی ته راغلی چی هغی تاهم ډير محدود خلك راغواړی .

## د ښځی د واده دود :

پخوا به که چا خپل زوی ، ورور ، تره او يا . . . . . ته ښځه کوله ، نو به يی د خپلو دوستانو ، آشنايانو او نږدې عزيزانو سره مصلحت او مشوره کوله . د ټولو دوستانو او آشنايانو نظريـات به يی د ښځی او د هغی د کورنی په باب اوريدل . که ټولو به مشوره ورکړه ، چی داښځه وکړه ، نو کړله به يی او که به يی ورته وويل چی مه يی کوه نو له هغی معاملی څخه به تيريده . د ښځی په کولوسره به ډيرز يات ټوپك ويشتل کيدل ، د ښځو او نرو اتڼو نو او خوشحاليو به څو ورځو او شپو دوام کاوه ، مگر په دې وختو کی يی ښه او ښتی او داسی حالت ته رسيدلی ده ، چی د هرچا چی په کوم ځای کی ښځه خوښه شی ، د دې پر ځای چی له خپلو دوستانو سره مصلحت او مشوره وکړي په خپله د جلی پلار ، ورور يا نوري کورنی سره د پولی پتی او نورو په برخه کی لاس ورسره نيسی ، او ښځه کوی او هغـه خوشحالی او اتڼو نـه او ميلمستياوې چی پخوا به په شپوشپو کيدې ډيرې لږې شوې دي .

# اربکۍ

پخو معمولاً په قومونو کې به د هر کلي څخه په دايمي او موقتي دول ځيني تکړه او قوي کسان دار بکيو په نامه انتخابيدل. هميشه به يي د خبرو دوړلو، راوړلو د جنګ خبر، ناغي د خلکو تولو ل اونوري وظيفي سر ته رسولي او هغوته به د قوم له خوا تنخواه يانور شيان ور کول کيدل. اکثره وخت به يې دشپې اوورځې پيرې کولي دغه دود که څه هم پخوا ډير ز يات و، په اوسني خت کې هم کله کله د ضرورت په اساس اربکي تشکيل کيږي. مګر هغه پخواني بڼه يې له لاسه ور کړې ده اودغه دوددله منځه تللو په حال کې دی.

## دچيغې وتل:

په پخوا وختو کې به که د چا څخه غلا وشوه يا به داوبو سيل راغی يا به دکوم کور څخه چا سڅه وتښتوله او يا بـه نور کليوالي اوقومي موضوعات پيښيږ شول. نو يو تن به ددم کور ته ورغلو هغه به يې خبر کړ او ورته به يې ويل:

چې د چيغې دول ووهه. دم به چې د چيغې دول و واهه نو ټول خلك به هماغه ځای ته راغلل چې هلته بـه د چيغې دول و هل کيده وروسته له هغه به خلك په هماغه کارپسې تلل. دچيغې وتل ډير زيات رواج وه په اوسنيو وختو کې يو داچې دغه دول کارونه ډير لږ پيښيږي دوهم دا چې که شخصي موضوعات وي نودغه شخص دم نه خبروی

چې ډول ډوهی او دپښتو ا په شان تر ل نخلك يو اتفاق نه ورځی نو له
همدغه سببه دغه دود اوس هم دمنځه تلو په حال کی دی .

## دزيري کـول

پښتو ا به که د چا په کور کی کومه ښادي پيښه شوه؛ نو د خپل کلی دم ته به يی خبر ورکاوه چی زموږ دوستان او آشنايان راخبر کړه. دم به چی په هر دوست او اشنا باندې زری وکړ، نو هغه به د خپل وس او تـوان په اندازه پيسی يا کوم بـل شی ور کاوه په اوسنی وخت کـی يـی ښه اوښتی ده اوس کـه چاته ښادی پيدا شی نـو دخپـل کـو ريـو تـن خپلـو دوستانو تـه د زيـری لـه پـاره ورلېـږی اودوستان يې زری ده ته ورکوی او لـږ خلـك پيدا کيږی چی دم خپلو دوستانو او آشنايانو ته دښادی دخبر ولو له پاره لېږی، هغوی خو اول زری نه ورکوی او که وريـی کـړ بياهم دپښتو اوختو ځخه کم وی .

ددودونو په دريمه برخه کی به هغه دودونه دنمونی په توګه در وښيو چی تراوسه پوری شته :

دښځی دولوردود:

دخوست په سيمه کی دښځی دواده دودپه دوه ډوله دی: يو پـه پيسو او بل په بدل .

۱ ـ په پيسو دغه دودله ډيری پښتو اځخه رواج دی اوپـه هرقوم کی دپيسو اندازه معلومه وی چی له لـوزرو نه نيولی تـر شلو يښتو زروپوری وی او دپيسوز ياته اندازه يـی له نوروشيانو ځخه تـر پښتو

سوا وشپیتوز رو پورې هم رسېږي او پدې څو کالو کې دپیسوانـدازه ان تر يو لـک دو او در يو لـکو پورې رسيدلې ده. دښځې دولور په برخه کې اوس اکثرو خلکو له پخوانيو نرخو نو څخه ستر ګي پټې کـړې یوازې ددوا ړو خوا وو په جوړ بدلو پورې اړه لري چې په هر څو مره سره جوړ شو ل. دولو ر دغه دود دير ملامتو ونکي او دردناك دی دجلۍ موراو پلار ددې پر ځای چې دخپلې لور ژوند په نظر کې ونيسي پـه پيسو پسې ګرزي او مقابل لوري يې هم دارتياله مخې ور کوي. که په آینده کې یـې ژوند هر څنـګه وي په دی پسې نه ګرزي مقصد يې دښځې کول دي.

۲ - په بدل: ځيني خلـك چې دښځې دواده او ولور طاقت نلري که چيري په کور کې کومه نجلۍ ولري نو هغه په بدل کې ور کوي که چيري نو موړې جلۍ وره وي نو هغه ددواړو جا نبو په رضایت دوړې جلۍ په پلار يا نو ره کورنۍ باندې دپيسو سرزدی چې انـدازه يې له شلوز رونه زياتيږي.

په دی ډول ودونو کې يو لوی زيان شته او هغه دادی: که چيرې يو له دغودواړو کورنيو په خپلې نږور باندې ظلم، تيری اووهل تکول وکړي نو مقابل لوري بـې له دې چې په جلۍ (نږور) کې ګناه وي او که نه وي په هغې باندې هم دوه چنده ظلم کوي او دخپلې لور کسات ځنې اخلي. ځيني خلـك بياله دغه ډول دوستۍ څخه ډ يره کر که او نفرت کوي.

## دعوه

که دکوم سړی دچا سره پر یوه موضوع شخړه پیښه شی اودعوه منځ ته راشی نودغه دعوه په دوه ډوله فیصله کوی، یو یی په رسمی ډول او بل دجرگواومرکو په ډول .

دجرگواومرکو په ډول دعوه په پنځه قسمه وی: ۱ـ دکلی خلک ۲ ـ دوستان، ۳ ـ ملایان، ٤ ـ دنوم سپین ږیری، ٥ ـ دقومو نو نرخیان.

۱ـ که چیری موضوع وړه وی نو دواړه خواوی دکلی سپین ږیری اونیک خلک چی شمیر یی ډیر زیات نه وی راغواړی او دهغوی په خوله جوړه سره کوی .

که دواړه طرفه سره عزیزان اویا خپلوان وی اودکلی په خلکو سره جوړ نه شول نو بیا داسی دوستان راغواړی چی دواړو سره ددوستی اړیکي ولري، هغه بیادغه دعوه ورفیصله کوی .

۳ ـ ځینی وختونه بیا داسی کیږی چی ددوستانو په شمول دوه دری تنه ملایان هم راغواړی ، یووخت یوه خوا رابلل شوو کسانو ته دوډۍ ورکوی او بل وخت بیا بله خوا . په دی ترتیب سره تر هغی ډوډۍ سره ورکوی ترڅو چی یی دعوه ورحل کړی نه وي اویا یی دغو خلکو ته دنه جوړیدو ځواب ورکړی نه وي . که سره جوړ شول اویا نه شول نو رابلل شوي ملایان رخصتوي دغه ملایانو ته ددواړو خواوو په مشوره هرڅومره پیسی یی چی ورته تاکلی هم ورکول کیږي . . .

۲ ــ کله کله و رې دعوې په غټو دعوه بدلیږي او خبره د کلي نه قوم ته ته رسیږي ، په دغه ډول دعوه کې بیا دواړې خواوې دقوم مشران راغواړي، دقوم مشران یې په قومي نرخ ورخلاصوي. ځینې وخت دعوه کوونکي په قومي نرخ نه جوړیږي دلته ملایان راغواړي او خبره په شریعت ور فیصله کوي .

۵ ــ که کوم وخت دعوه په دغو خلکو هم خلاصه نه شوه او خبره د کلي نه قوم او دقوم نه قومونو ته ورسیده، بیا د هر قوم نه داسې خلک چې په پښتني نرخونو (ترونونو) کې وارد وي راټولوي په داسې دعواوو کې اکثر، وخت لوی لوی ملایان او عالمان هم برخه لري. دواړې خواوې په قومي نرخ سره جوړیږي، نو نرخیان فیصله ورکوي او که شریعت یې خوښه وي بیا یې ملایان دعوه ورخلاصوي که کوم یو په دې باندې هم بیا نه دریږي نو هغه ته ملامت وایي او ټول خلک ورته یو لاس کیږي . ځینې وختونه داسې کیږي چې که یو څوک کومه ښځه وتښتوي او ښځه میړه ولري نو محلي دوددا سې دي چې دواړه سره مړه کړي او ښځه پر بزدي نو په نوروي سري باندې مړی پورشو او که چیرې دواړه مړه کړي بیا نو خبره خلاصه ده. که چیرې دهغه سړي ښځه چې ښځه یې ورنه تښتولې ده دومره زور او قدرت ونه لري چې یو یا دواړه مړه کړي بیا نو جوړه ورسره کوي او پخپله ښځه هغه سړي ته چې تښتولې یې ده ورطلاق وي او هغه یې ځانته نکاح کوي مګر ځینې وختونه داسې هم کیږي چې څوک ښځه وتښتوي بیا بل وطن

ته تښتي او فرار کوي نه په جوړه پسې ګرځي او نه په طلاق پسې او بدیې تر کلونو کلونو او پیړیو پیړیو پورې پاتې کیږي هغه ښځه چې میړه ولري یایې خوښ وتښتوي په محلي اصطلاح کې د«کونیښکلي» و رته وایې او که چیرې داسې ښځه چې پیغله وي ومیړه ولري خوښ یې وتښتوي نو دلته یادواړه سره مړه کوي اوکه چیرې یې مړه نه کړل نو دښځې وارث جوړه ورسره کوي او دښځې تښتو ونکې دښځې دو لور هغه پیسې ور کوې چې په سیمه کې رواج وي او دواړه سره دوستان کیږي .

که چیرې کوم سړی په یوه خبره یا یوه موضوع مړ کړی مقابل سړی یې هم مړ کوي. که چیرې یې مړ ګټ دلاسه نه ؤ پوره بیانو په قومي نرخ ورسره جوړیږي او هغه په اولسي دود چې دمړي په بدل کې په یوه ښځه ور کوي او نوری خومره پیسې یې چې په کیښوو ی هغه به ور کوي . وروسته ددوی په منځ کې مرګټ اوژوبله له منځه ځي.

## غـلاکـول

که چیري خوښ په غلا کې ونیول شي او یاغلاور باندې ثبوت شي که یې و بامنه نوخلاص شو او که یې ونه بامنه نومحلي دودداسې دی چې نومو ړی غ . به تول شیان هرڅه یې چې غلا کړی وي ور کـوي اوهم به دغلا شرم هرخومره یې چې ور باندې کیښود ور کوي.دغلا شرم معمولاً یو پیسه وي کله کله پر پسه علاوه پنځه سوه یایوز رافغاني

هم و ر باندی ژدی، ځینی وختو نه بیا په دی شرم هم نه قانع کیږی له دې
هم زیاتی پیسی غواړی او داهم وایی چی نتوانی دی ر اته و کړی ور و سته
له هغه بیاغل سری پر یږدی .

## فـاغـه

دخوست په سیمه کی دناغی دود په دری ډوله دی : لومړی دقوم
ناغه، دوهم دکلی ناغه دریم دیو یاڅو تنو ناغه چی دا بیاهر یو څو ډولونه
لری دلته یی په لاندی تو گه وړاندی کوم :

۱ ــ دقوم ناغه دبل قوم په مقابل کی : په اکثره قومونو کی دپخوا
وختوڅخه ځینی پر یکړی اونرخونه موجود دی چی
د هغوله مخی هیڅ قوم دبل قوم په مقابل کی تیری اوظلم نه کوی. که
کوم څوك له هغو پریکړ واونر خونوڅخه تجاوز و کړی دبل قوم له
خوا ناغه کیږی او هغه قوم د خپلو پخوا نیو اصولو په مطابق ناغه ور کوی
مثلاً که دد وو قومونو ترمنځ دیوی عامی صحرا دونبو په باب چی په
هغه کی به هیڅ قوم تر دی و ختـه پوری خپل حیوانات نه څروی یا
د فره دلر گیو د شول ماتوا و په برخه کی که کوم یو قوم له خپلی خبری
واوښت نود قومی ناغی په نرخ سره ناغه کیږی او که ښننه یی وغوښته
ښښی یی او که یی و نه باښه نوپه ناغه ور کولو مجبور دی . ځینی
وخت داسی هم پیښیږی چی له د غو کارونو څخه سخت کارونه
ددوو قومونو ترمنځ پیدا کیږی، مثلاً که چیری د یو قوم سړی ته دبل
قوم خلك په ناحقه بی ابی سپکه او یا نور بد اعمال ورسره و کړی نود هغی
ناغه بیا د یر سخته وی او کله کله خبره مر گ اوژوبلی ته رسیږی .

۲– د قوم ناغه د کلي په مقابل کې :

که چیری په خپل قوم کې کوم کلي د قومي اصولو مخالف کارو کړي نو هغه کلي د خپل قوم له خوا ناغه کیږي، مثلاً که د دوو قوموتر منځ کومه موضوع پیښه شي یو کای یا جنګ ته ورشي یا تاوان ته حاضر نه شي یاد خپل قوم خبری هغه بل قوم ته یو سی او یا د غه کلي د خپل قوم او به پټي ولګوي او داسي نور، نو خپل قوم ته چې هر څومره یې خوښه وي ناغه (جریمه) ورکوي .

۳– د قوم ناغه د یوه تن په مقابل کې: که چیری قوم یوه خبره وکړي یا پر کومه موضوع باندی فیصله وکړي او په قوم کې یو داسي سړی پیداشي چې د قوم د خبرو او فیصلو مراعات ونه کړي بیا نو د خپل قوم له خوا ناغه ورته تاکل کیږي هغه سړی یې هم باید ورکړي ځیني وختونه داسي پیښیږي چې همدغه سړی د ځینو لویو غلطو کارونو په اثر شړل کیږي یا یې کور سوزول کیږي او وهل کیږي او داسي نور .

دوهم د کلي ناغه د قوم په مقابل کې : ځیني وختونه داسي پښیږي چې یو قوم جګ شي په یوه کلي باندی تیری وکړي نو هغه کلي د قوم سره دعوه کوي کله چې قوم ملامت کړي نو خپله تاکلي ناغه او یا هر څومره تاوان یې چې کلي ته ورسولی وي تاوان تري احلي دغه دعوی عموماً په ځمکه ، لاروا ویا نورو قومي شیانو باندی وي .

۲ــ د کلي ناغـه د کلي پـه مـقابل کې : که چيرې کوم کلی د بـل کلي پـه مقابل کې تجاوز وکړي نود دعوی‌د فیصلي‌وروسته ناغه ورکوي مثلاً که چيرې يو کلی دبل کلي په ځمکو کې نوی ویاله تېر وي‌يا دهغوی ونې لنډه وي يا يو کلی د بل کلي‌اوبه لګوي او يا په ځينو نورو شيانو کې ځان‌ور ګډ وي‌نود عوه‌ورسره کوي. کله‌چې تیرې کوونکی ملامت شي نود قومي اصولو په اساس ناغه ورکوي او که ملامت نه شو نود عوه کوونکی کلی کرار کښېني .

۳ــ د کلي ناغه‌ديوه تن پـه مقابـل کې : که چيرې په يو کلي کې داسې سړی پيداشي چې د ښځو کليوالو سره ځمکه فصل، ونه،لار،اوبه او يا په نورشيانو د عوه جوړه‌شي او بيا د خلکـو له خوا ملامت شي نود ښځو کـليوالي او قومي نرخونو او پريکړو پـه مطابق جريمه او ناغه کيږي. که چيرې يې ناغه ور نه کړه نو کله کله داسې هـم پيښيږي چې ټول کلي نـو موړی سړی پـه سر شړي يعنې په ښادي او ژوندی ښو او بدو کې ګډون نه‌ورسره کوي اويو ازې يې پريږدي يايې پـه ټولو وهي او يا نور اعمال ورسره کوي .

دريم ديوه تن ناغه‌ديوه‌تن او پاڅونو په مقابل کې : که چيرې په کلي کې يـوه سړي دبـل سړي اويـا ښـوتنـو سره پر کومـه موضوع باندې د عوه‌پيداشي نو هغه د کليوالي او قومي پريکړو پـه مطابق د ناغې ورکولـو سره حل کيږي،هر يـويې چې ونه منـي نـو ملامت وي‌او ټول را بلل‌شوي کسان بيا‌ورته په يوه خوله وي .
ددغه‌ډول ناغې‌دوهم‌او دريم‌شکل‌هم‌په‌پورتنيو د ولونو سره‌حل کيږي.



